﴿وَلَا تَأْكُلُوا أَمْوَالَكُمْ بَيْنَكُمْ بِالْبَاطِلِ ﴾ [البقرة : ۱۸۸] ژباړه: او مه خورئ يو د بل مالونه په باطلې طريقې سره، يعنې ناروا او حرام.

﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا يَسْخَرْ قَوْمٌ مِنْ قَوْمٍ عَسَى أَنْ يَكُونُوا خَيْرًا مِنْهُمْ وَلَا نِسَاءٌ مِنْ نِسَاءٍ عَسَى أَنْ يَكُنَّ خَيْرًا مِنْهُنَّ وَلَا تَلْمِزُوا أَنْفُسَكُمْ وَلَا تَنَابَزُوا بِالْأَلْقَابِ بِئْسَ الِاسْمُ الْفُسُوقُ بَعْدَ الْإِيمَانِ وَمَنْ لَمْ يَتُبْ فَأُولَئِكَ هُمُ الظَّالِمُونَ﴾ [الحجرات : ۱۱]**ژباړه:** اى مؤمنانو نه دې نارينه پر نورو نارينه وو ټوکې او ملنډې وهي، کېدى شي چې هغوى له دوى نه غوره وي او نه دې ښځې په نورو ښځو ټوکې او ملنډې کوي کېداى شي چې هغوى له دوى نه غوره وي. په خپلو منځو کې يو په بل طعن مه وايئ او مه يو بل په بدو نومونو سره يادوئ. له ايمان راوړلو وروسته په فسق کې نوم پيدا کول ډېره بده خبره ده. کوم کسان چې له دغه چار چلند څخه راوانه وړي هغوى ظلمان دي.

**د تدريس طريقه:** پوښتنه او ځواب، انفرادي، توضيحي او ډله ييز

**د لوست مرستندويه توکي:** کتاب، تخته، تباشر.

| وخت | د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکو فعاليتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقيقې سريزه | ښاغلى ښوونکى دې له سلام اچولو، روغبړ کولو، ټولګي منظمولو د کورنى دندې له کتلو وروسته تېر شوي لوست په دې پوښتنه وارزوي، د الله تعالىﷻ او مسلمانانو په وړاندې څوک د عزت خاوند دى؟ | زده کوونکي د ټولګي نظم مراعاتوي. |
| | ښاغلى ښوونکى د انګېزې او هڅونې د پيدا کېدو لپاره د نوي لوست عنوان له زده کوونکو څخه پوښتي، يو مسلمان د نورو مسلمانانو په وړاندې څه مسؤوليت لري؟ | زده کوونکي پوښتنو ته ځواب وايي. |
| | **د لوست بهير:** | |
| ۲۵ دقيقې | ۱ـ ښاغلى ښوونکى له زده کوونکو څخه يوه زده کوونکي ته ښوونه کوي، چې د نوي لوست عنوان په تخته وليکي، بيا زده کوونکو ته دنده سپاري چې لوست يو ځل په پټه خوله ولولي او که د کومې ستونزې سره مخ شي هغه دې په نښه کړي. په خپله ښوونکى په همدغه وخت کې د لوست بغلي عنوانونه د سختو کلماتو سره په تخته ليکي او ژباړي يې. | يو زده کوونکى پوښتنې ته ځواب ورکوي.<br>زده کوونکي لوست په پټه خوله مطالعه کوي. |
| | ۲ـ بيا له دې نه وروسته ښاغلى ښوونکى د بغلي عنوانونو څخه په ګټه اخيستلو لوست شرح کوي او بيا له څو کمزورو زده کوونکو څخه غواړي چې هر يو د يوه بغلي عنوان تشريح وکړي. | زده کوونکي يې وايي.<br>زده کوونکي يې اجراء کوي. |
| | ۳ـ د لوست په بهير کې ښاغلى ښوونکى له زده کوونکو غواړي چې د کتاب فعاليت د لارښوونې سره سم اجراء کړي. | زده کوونکي پوښتنو ته ځواب ورکوي. |

| | | |
|---|---|---|
| | **ارزونه:**<br>ښاغلی ښوونکی د خپلې ډاډېنې لپاره زده‌کوونکي په څو پوښتنو ارزوي. | زده‌کوونکي پوښتنو ته ځواب ورکوي. |
| ۱۰ دقیقې | **د لوست لنډیز:**<br>د اسلام مقدس دین له مخې مسلمانان سره ورونه دي، نو نه ښايي چې يو ورور په بل ورور ظلم وکړي يا هغه سپک وګڼي يا هغه په کړاوونو کې يوازې پرېږدي، بايد وپوهېږو چې د ورور وينه، مال او بې عزتي په ده حرامه ده، که د ورور په حق کې تېري وکړي، نو د الله ﷻ د قهر وړ ګرځي. | زده‌کوونکي د لوست لنډيز ته غوږ نيسي. |
| ۵ دقیقې | **کورنۍ دنده:**<br>ښاغلی ښوونکی دې زده‌کوونکو ته داسې کورنۍ دنده ورکړي چې د درسي کتاب سره سمون ولري. | زده‌کوونکي خپله کورنۍ دنده اخلي. |

**شپږم لوست**:

**عنوان:** غوره اخلاق

**صفحه:**

**وخت:** یو درسي ساعت (٤٥ دقیقې)

**موخې:** زده‌کوونکي باید:

١_ د حدیث عبارت او د لوست متن صحیح ولوستلی شي.

٢_ د اخلاقي ارزښتونو په اهمیت وپوهېږي.

٣_ څه معلومات او پوهه چې ترلاسه کوي، په خپل ورځني ژوند کې هغه عملي کړي.

**اضافي معلومات:**

اخلاق د خُلق جمع ده او په اصطلاح کې د انسان ټولو خویونو ته ویل کیږي. اخلاق په دوه ډوله دي:١_ غوره خویونه چې د تل لپاره انسان ته د غوره کړنو ښوونه کوي. ٢_ بد او ناوړه خویونه چې د تل لپاره انسان بدو او ناوړو کړنو ته سوق کوي. د پیغمبرانو‌عليهم السلام د څرګندو پروګرامونو څخه یو د خلکو د اخلاقو ښه کول دي، لکه څنګه چې نبي کریمﷺ فرمایي: ((**انما بعثت لاتمم مکارم الاخلاق**.))

**ژباړه:** په یقیني توګه زه رالیږل شوی یم، څو غوره اخلاقو ته بشپړتیا وروبخښم.

رسول اللهﷺ د غوره اسلامي او انساني اخلاقو نمونه او سرچینه ده. دا یو منونکی حقیقت دی چې آن کافران هم اعتراف پرې لري، ځکه د ده غوره اخلاق په قرآني آیت ثابت دی. الله تعالی فرمایي: ((و وانک لعلٰی خلق عظیم.))

ژباړه: په باوري توګه ته ای محمدﷺ د عالي او لوړو اخلاقو او سیرت لرونکی یې.

ترمذي د حضرت عایشه رضی الله عنه څخه د نبي کریمﷺ د اخلاقو په هکله روایت کړی چې د رسول اللهﷺ اخلاق دا وو، خپل پایزار یې په خپله پیوند کول، خپلې جامې یې په خپله ګنډلې او ستاسو په څېر یې د کور کارونه تر سره کول، میږه یې لوشله او خپل کارونه یې په خپله کول. د غوره خویونو په اړوند یې نور حدیثونه هم روایت شوي، لکه وخالق الناس بخلق حسن، یعنې له خلکو سره په غوره اخلاقو چلیږه.

رسول اللهﷺ کله چې معاذ بن جبلرضي الله عنه یمن ته د والي په توګه لیږه، نو یو لړ لارښوونې یې ورته وکړې چې ځینې یې دا دي:

د خلکو سره په غوره اخلاقو چلند کوه. په دې مبارک حدیث کې یو راز پټ شوی چې هغه د دین پراختیا او ترقي ده، ځکه رسول اللهﷺ په دې پوهېده، که چېرته معاذ بن جبل په یمن کې د خلکو په وړاندې ښه رویه او ستایل شوي اخلاق وکاروي، نو ټول به د اسلام په دین مین شي. هر کله چې دا یوه ثابته خبره ده چې غوره اخلاق خلک ښکار کوي. که چېرته موږ د اسلام تاریخ ته ځیر شو دا حقیقت به راته څرګند شي چې د نبي کریمﷺ او صحابه وو کرامو یوازې ستایل شوي او غوره اخلاق د ډېرو خلکو د مسلمانېدو لامل شوي دي او همدارنګه رسول اللهﷺ یوه ورځ خپلو صحابه وو ته وفرمایل: احسنکم احسنکم لاهله: یعنې ډېر غوره د تاسو هغه شخص دی چې د خپل کور او کهول سره په غوره توګه چلیږي.

نو هر مسلمان ته په کار ده چې دخپلو اخلاقو د ښه کولو لپاره د نبي کریمﷺ اخلاق او سیرت د ځان لپاره نمونه او سرمشق وګرځوي او دې موخې ته د رسېدلو لپاره تر ټولو غوره لار د نبوي سیرت مطاله کول دي.

**د تدریس طریقه:** ځانګړی، ډله ییز، پوښتنې او ځوابونه، توضیحي.

**د لوست مرستندويه توکي:** کتاب، تخته، تباشير او داسې نور.

| وخت | د ښوونکي فعاليتونه | د زده‌کوونکو فعاليتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقيقې سريزه | ښاغلی ښوونکی دې سلام اچولو، روغبړ، ټولګي منظمولو، د کورنۍ دندې له کتلو وروسته تېر شوی لوست دا رنګه وارزوي:<br>څوک د حديث دا برخه: ((المسلم اخوا المسلم لايظلمه)) ژباړلی شي؟<br>آيا ويلی شئ يو مسلمان بايد د کومو صفتونو خاوند وي؟ | زده‌کوونکي ځواب وايي.<br>يو زده کوونکی لوست وايي. |
| ۲۵ دقيقې | **د لوست بهير:**<br>۱ـ ښاغلی ښوونکی د لوست عنوان (غوره اخلاق) په تخته ليکي او له يو زده‌کوونکي څخه غواړي چې لوست ولولي او نور زده‌کوونکي د غوږ نيولو په ترڅ کې ستونزمن ځايونه په نښه کوي.<br>۲ـ بيا ښاغلی ښوونکی له يوه زده‌کوونکي څخه غواړي چې د حديث شريف متن له ژباړې سره په مناسب آواز ووايي.<br>۳ـ وروسته له يوه بل زده‌کوونکي څخه غواړي پاتې لوست په مناسب آواز ولولي او په خپله د دې فعاليت په بهير کې ټولګی تر خپلې څارنې لاندې راولي.<br>٤ـ بيا وروسته لوست شرح کوي او د دې ترڅنګه سختې کلمې له معنا سره په تخته ليکي او له زده‌کوونکو څخه هيله کوي، چې هغه يادداشت کړي.<br>۵ـ د لوست په اوږدو کې د کتاب فعاليت د لارښوونې سره سم ترسره کوي.<br>**ارزونه:**<br>ښاغلی ښوونکی د خپلې ډاډينې لپاره د کتاب د پوښتنو څخه په ګټې اخيستلو زده‌کوونکي ارزوي. | بل زده کوونکی پاتې لوست وايي.<br>زده کوونکی غوږ نيسي.<br>زده‌کوونکي فعاليت اجرا کوي.<br>زده‌کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته ځواب وايي. |
| ۱۰ دقيقې | **د لوست لنډيز:**<br>ښه خوی هغه غوره کړنې دي چې په کولو يې زړه خوشحالېږي او بدې کړنې هغه دي چې په کړنه يې د انسان زړه اغېزمن او ناآرامه کېږي او نه غواړي چې څوک پرې خبر شي. غوره خويونه د انسان لپاره د دنيا او اخرت نېکمرغی او ښېګڼې لامل جوړېږي او ناوړه اخلاق بدی، بدمرغي او دښمني منځ ته راوړي او په پايله کې د مسلمانانو د اختلاف سبب کېږي. | زده‌کوونکي د لوست لنډيز ته غوږ نيسي. |
| ۵ دقيقې | **کورنۍ دنده:**<br>ښاغلی ښوونکی د درسي کتاب له لارښوونې سره سم زده‌کوونکو ته کورنۍ دنده سپاري. | زده‌کوونکي خپله کورنۍ دنده اخلي. |

**اووم لوست**:

**عنوان:**

**صفحه:**

**وخت:** یو درسي ساعت

**موخې:** زده کوونکي باید:

۱ـ د حدیث شریف متن صحیح ولوستلی شي.

۲ـ د لوست معنا زده کړي.

۳ـ د نورو په اړه په ځان کې د رحم او مهربانۍ روحیه پیدا کړي.

**اضافي معلومات:**

رسول اللهﷺ په دې مبارک حدیث کې په مخلوقاتو د رحم او زړه سوي بیان کړی دی. دمسلم شریف په کتاب کې د دې موضوع د اهمیت په هکله نبي کریمﷺ داسې لارښوونه کړې ده:

څوک چې د یوه مسلمان څخه دنیوي غم او اندیښنه لرې کړي، الله تعالی د ده دنیوي او اخروي غمونه لرې کوي او څوک چې یوه له تنګ لاسي مسلمان سره چې په ستونزو او کړاوونو، لکه قرض او داسې نورو کې اخته وي، آساني راولي الله ﷻ د هغه ټولې دنیوي او اخروي ستونزې او کړاوونه آسانوي. څوک چې د یوه مسلمان په عیب پرده واچوي، الله ﷻ د هغه په ټولو دنیوي او اخروي عیبونو پرده اچوي او په باوري توګه الله تعالیﷻ د خپل بنده مرستندوی دی، ترهغه چې بنده د خپل ورور په مرسته کې وي.

البته په حیواناتو حتٰی پر نباتاتو زړه سوی هم د دې حدیث تر مصداق لاندې راځي، خو افسوس ډېرو خلک دغه حکم ته هیڅ پاملرنه نه لري او په حیواناتو ظلم کوي او له دې څخه هم بې خبره دي چې په حیواناتو رحم او مهرباني د الله د رضا لامل ګرځي.

**د تدریس طریقه:** پوښتنې او ځوابونه په ځانګړې او ډله ییزه توګه او توضیحې.

**د لوست مرستندویه توکي:** تخته، کتاب، تباشیر...

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې سریزه | ښاغلی ښوونکی له سلام، روغبړ او کورنۍ دندې له کتلو وروسته تېر لوست د څو پوښتنو په ترځ کې ارزوي.<br>څوک ویلی شي چې غوره اخلاق په ټولنه کې څه رول لوبولی شي؟<br>بیا د انګېزې او فعالیت لپاره له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي.<br>څوک ویلی شي چې ولې یوه صحابي ته د ابو هریره لقب ورکړی شوی دی؟ | زده کوونکي د ټولګي نظم مراعاتوي<br><br><br>زده کوونکي ځواب ورکوي. |
| ۲۵ دقیقې | **د لوست بهیر:**<br>۱ـ ښاغلی ښوونکی د لوست عنوان (غوره اخلاق) په تخته لیکي او زده کوونکو ته دنده سپاري، چې لوست یو ځل په چوپه خوله مطالعه کړي او ستونزمن ځایونه یې په نښه کړي او ښوونکی په عین حال کې کلمات په تخته لیکي. | زده کوونکي لوست په پټه خوله |

| | | |
|---|---|---|
| | ۲_ بیا ښاغلی ښوونکی د زده‌کوونکو پاملرنه خپلو کتابونو ته رااړوي. لوست لولي او شرح کوي يې او د لوست په بهير کې ستونزمنې کلمې تکراروي او د ضرورت په صورت کې يې په تخته ليکي.<br>۳_ بيا ښاغلی ښوونکی د حدیث شریف متن په یوه زده‌کوونکي او ژباړه يې په بل زده‌کوونکي لولي.<br>٤_ بيا د لوست په بهير کې ښاغلی ښوونکی د کتاب فعالیت له ښوونې سره سم سرته رسوي.<br>٥_ ښاغلی ښوونکی د ضرورت په صورت کې ستونزمنې کلمې په تخته ليکي او ژباړي يې.<br><br>**ارزونه:**<br>ښاغلی ښوونکی د خپلې ډاډينې لپاره د کتاب د پوښتنو څخه په ګټه اخيستلو زده‌کوونکي ارزوي. | مطالعه کوي.<br><br><br><br><br><br><br><br>يو زده کوونکی د حديث متن سره له ژباړې وايي، بل زده کوونکی پاتې لوست وايي.<br><br>زده‌کوونکي ځواب وايي. |
| ۱۰ دقيقې | **د لوست لنډيز:**<br>رحم او شفقت په اخلاقي اړخونو کې تر ټولو لوړ ارزښت لري چې د بډايانو خلکو اړيکې له فقيرانو او بېوسو خلکو سره ښلوي او د زورورو لاس په بېوزلانو له تېري څخه بندوي.<br>د الله احسان او ښېګڼه په شفقت او مهربانۍ کې نغښتې ده چې آن ټول حیوانات او نباتات ورځنې برخمن کېږي، نو بايد موږ زيار وباسو د الله جل جلاله په مخلوق مشفق او زړه سواندي و اوسو، څو د الله جل جلاله د بې انتها رحمت وړ شو. | زده‌کوونکي د لوست لنډيز ته غوږ نيسي. |
| ۵ دقيقې | **کورنۍ دنده:**<br>ښاغلی ښوونکی د درسي کتاب د لارښوونو مطابق زده‌کوونکي د کورنۍ دندې په ترسره کولو ګوماري. | زده‌کوونکي خپلې کورنۍ دندې له ځان سره يادداشت کوي. |

**اتم لوست**:

**عنوان:**

**صفحه:**

**وخت:** یو درسي ساعت

**موخې:** زده‌کوونکي باید:

١_ د حدیث شریف متن صحیح ولولي.

٢_ د ایمان اهمیت.

٣_ زده‌کوونکي باید د کلمو معناوې وپېژني.

٤_ زده‌کوونکي باید د ایمان اغېزه په خپلو کړنو کې احساس کړی شي.

**اضافي معلومات:**

رسول اکرمﷺ په دې جامع حدیث فرمایي: ((قل امنت بالله ثم استقم)) او دا حدیث د رسول اللهﷺ د جوامع الکلم یعنې د ټولو اړخونو رانیونکو کلمو څخه دی.

او دا حدیث د الله ﷻ د دې وینا سره سمون خوري. ان الذین قالوا ربنا الله ثم استقاموا... الایه. یعنې په یقیني توګه هغه کسانو چې وویل زموږ پروردګار الله دی. د شریعت په احکامو یعنې اسلام باندې استقامت او پابندي وکړه او د الله تعالی سره یې هېڅ شریک ونه نیوه.

نو له دې امله په استقامت سره امر دا دی چې په ویناوو، کړنو او طریقو کې په صحیح معنا استقامت مراعات شي او اصل استقامت او پابندي د الله تعالی په توحید د زړه استقامت دی، لکه څنګه چې ابوبکر صدیقؓ د الله تعالی دا وینا تفسیر کړې او وایي: ((ان الذین قالوا ربنا الله ثم استقاموا)) کله چې زړه د الله تعالی په پېژندنه استقامت او پابندي ومومي او د الله وېرې ته په زړه کې ځای ورکړي او د الله عبادت او درناوی غوره کړي، د هغه سره دوستي او محبت وکړي. په الله باور او ځان سپارنه وکړي او د الله ﷻ نه پرته د نورو معبودانو څخه مخ واړوي، نو د ده ټول غړي د الله ﷻ په اطاعت لګیا کېږي او وایي یقیناً په بدن کې زړه پاچا دی او د بدن غړي یې لښکر ګڼل کېږي، کله چې پاچا ثابت قدم وي، نو څرګنده ده چې لښکریان هم ثابت قدم اوسېږي.

**د کلمو معناوې:**

**جامع:** د ټولو اړخونو رانیوونکی

جوامع الکلم: د ټولو اړخونو رانیونکې کلمې

مطابق: برابر مساوي

**د لوست مرستندویه توکي:** تخته، تباشیر، کتاب او داسې نور

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ٥ دقیقې سریزه | ښاغلی ښوونکی له سلام ویلو، روغبړ کولو، د ټولګي منظمولو او د کورني دندې له کتلو وروسته تېر شوی لوست دا رنګه ارزوي: | زده‌کوونکي ځواب ورکوي. |
| | څوک من فی الارض جمله معنا کولای شي؟ او انګېزې او هڅونې پیدا کېدو لپاره د نوي لوست عنوان له زده‌کوونکو څخه پوښتنې. | زده‌کوونکي ځواب ورکوي. |
| | څوک ویلای شي چې د اعمالو او کړو وړو د قبلېدو لپاره څه شرط دی؟ | |
| | **د لوست بهیر:** | |
| | ١_ ښاغلی ښوونکی د لوست عنوان د یوه زده‌کوونکي په واسطه په لوی | یو زده کوونکی د لوست |

| | | |
|---|---|---|
| ۲۵ دقیقې | خط په تخته لیکي او له بل زده‌کوونکي څخه غواړي چې د لوست بغلي عنوانونه په ښه خط په تخته ولیکي.<br>۲ـ ښاغلی ښوونکی زده‌کوونکو ته دنده سپاري چې لوست په پټه خوله ولولي او په خپله په عین وخت کې کلمې: جامع، جوامع الکلم له معناوو سره په تخته لیکي.<br>۳ـ ښاغلی ښوونکی د زده‌کوونکو پاملرنه خپلو کتابونو ته رااړوي او یوه زده‌کوونکي ته دنده ورکوي څو لوست د کتاب له مخې په مناسب او وړ آواز ولولي. په خپله ښوونکی ټولګی څاري او ستونزمنې کلمې په تخته لیکي.<br>٤ـ ښاغلی ښوونکی لوست شرح کوي او بیا د کتاب فعالیت له ښوونې سره سم سرته رسوي.<br>**ارزونه:**<br>ښاغلی ښوونکی د کتاب د ارزونې له پوښتنو څخه په ګټه اخیستلو زده‌کوونکي ارزوي. | عنوان په تخته لیکي.<br><br><br><br><br><br>زده‌کوونکي یې لولي او نور غوږ نیسي.<br><br>زده‌کوونکي د استاد تشریح ته غوږ نیسي او فعالیت عملي کوي. |
| ۱۰ دقیقې | **د لوست لنډیز:**<br>تر ټولو لوړه او لویه پانګه او نېکمرغي د یوه مسلمان لپاره د ده ایمان دی ځکه ایمان د الله تعالی د خوشحالۍ او رضامندۍ لامل کېدای شي او د بنده ټول نېک عملونه د قبولیدو جوګه کېدای شي. همدارنګه ایمان د انسان د ډول ډول تشویشونو او اندېښنو مخنیوي کوي او د الله د رحمتونو دروازې د مؤمن په مخ پرانېزي. د ایمان په څنګ کې مؤمن بنده اړتیا لري، چې د ښایسته عملونو څخه برخمن و اوسي او د اسلام د مقدس دین په ټولو امرونو، فرمانونو او بنسټونو باندې پابندي ولري، چې دې پابندۍ ته استقامت وایي، نو له دې امله په دنیا او آخرت کې کامیاب او نېکمرغه شخصیت هغه دی چې د ایمان او استقامت څخه برخمن وي. | زده‌کوونکي د لوست لنډیز ته غوږ نیسي. |
| ۵ دقیقې | **کورنۍ دنده:**<br>ښاغلی ښوونکی د کتاب د ښوونې سره سم زده‌کوونکو ته کورنۍ دنده سپاري. | زده‌کوونکي خپله کورنۍ دنده اخلي. |

**نهم لوست**:

**عنوان:** د یتیم پالنه

**وخت:** یو درسي ساعت

**موخې:** زده‌کوونکي باید:

۱ـ د حدیث شریف متن صحیح ولوستلی شي.

۲ـ د لوست په مفهوم وپوهېدای شي.

۳ـ د یتیم پالنې اهمیت او ګټې د زده‌کوونکو په ذهنونو کې ځای پیدا کړای شي.

**اضافي معلومات:**

یتیم هغه ماشوم ته ویل کېږي چې پلار یا مور او یا دواړه ونه لري.

په یقیني توګه اسلام د یتیم د پالنې، ساتنې او له هغه سره ښې رویې ته خاصه پاملرنه کړې ده او د یتیم د کفیل او پالونکي ته یې ثوابونه او لوی اجرونه ټاکلي او د هغه لپاره یې آرامه ژوند تضمین کړی دی، څو یتیمان د سالمې ښوونې او پالنې په حاصلولو سره د یوه فایده من انسان په عنوان ټولنې ته وړاندې شي.

الله تعالی په دې هکله فرمایي: ((**فاما الیتیم فلا تقهر**)) یعنې ته هم زما د نعمت د احترام په خاطر یتیم مه آزاروه او همدارنګه فرمایي: **أَرَأَيْتَ الَّذِي يُكَذِّبُ بِالدِّينِ** (۱) **فَذَلِكَ الَّذِي يَدُعُّ الْيَتِيمَ** **[الماعون : ۱ ، ۲]** یعنې هغه کس چې د جزا د بدلې ورځ دروغ ګڼي تا لیدلي دي په باوري توګه هغه کس دی چې یتیم په سختۍ سره رټي او شړي یې.

دا دوه مبارک آیتونه د یتیم سره په پاملرنه او مهربانۍ تاکید کوي، چې دوی هم د حقارت احساس ونکړي او خپل ځان ناقص او له نورو څخه کم ونه ګڼي.

رسول اکرمﷺ په لاندې حدیث شریف کې د یتیم د پالونکي مقام او منزلت بیان کړی او فرمایي:

**((عن سهل بن سعد قال: قال رسول اللهﷺ انا و کافل الیتیم له و لغیره فی الجنت هکذا و اشار بالسبابة والوسطی و فرج بینهما شیئا)) رواه البخاري.**

ژباړه: د حضرت سهل بن سعدؓ څخه روایت دی او وایي چې نبي کریمﷺ وفرمایل چې زه او د یتیم کفیل (پالونکی) برابره ده خپل یتیم یې وي او یا د بل چا وي په جنت کې به داسې سره اوسېږو (او د کیفیت د بیان په خاطر یې) د سبابې او منځنۍ خپلو ګوتو ته اشاره وکړه او د دوو مبارکو ګوتو په منځ کې یې لږه شان فاصله راوړه او په بشپړه توګه یې سره و نه نښلولې.

ابن بطال رحمه الله د دې حدیث په شرح کې فرمایي: په هر مسلمان لازم دي چې په دې حدیث عمل وکړي، څو په جنت کې د رسول اللهﷺ له نږدې کسانو څخه وګڼل شي او په باوري توګه په جنت کې د نبي کریمﷺ تر درجې او منزلته لوړه درجه نشته.

نو د شریعت له مخې په اسلامي ټولنه کې یتیم په حقیقت کې هغه د توجه او پاملرنې وړ شخص دی چې د ډېر اهمیت څخه برخمن دی.

**د کلماتو معناوې:**

مقام او منزلت، درجه او مرتبه

کفیل: د یتیم متصرف او پالونکی

سبابه: د اشارې ګوته
حقارت: سپکوالی

**د تدریس طریقه:** پوښتنه او ځواب، په یوازې توګه، په ډله ییزه توګه، توضیحي
**د لوست مرستندویه توکي:** تخته، تباشیر، کتاب

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ٥ دقیقې سریزه | ښاغلی ښوونکی له سلام ویلو، احوال پوښتنې، د ټولګي تنظیمولو او کورنۍ دندې لـه کتلو وروسـته تېر شـوی لوست د څو پوښتنو په ترڅ کې ارزوي.<br>څوک ویلای شي چې د ایمان تر څنګه څه لازم دي؟<br>بیا وروسته د انګېـزې او هڅـونې د پیـدا کېـدو لپـاره د نوي لوست عنوان په هکله له زده‌کوونکو څخه پوښتنې کوي:<br>څوک ویلای شي چې کوم ماشوم بایـد د ډېـر شـفقت او زړه سوي وړ وګرځي؟ | زده‌کوونکي د ټولګي نظم مراعاتوي.<br>زده‌کوونکي ځواب ورکوي. |
| ٢٥ دقیقې | **د لوست بهیر:**<br>١ـ ښـاغلی ښـوونکی وروسـته لـه ځـواب حاصـلولو د لوسـت عنـوان ((د یتـیم پالنـه)) پـه تختـه لیکـي او زده‌کوونکو ته ښوونه کوي، چې لوست پـه پټـه خولـه مطالعه کړي او که له کومې ستونزې سره مخ شي هغـه په نښه کړي او په خپله په عین وخـت کـې د حـدیث ځینې کلمې چې په کتاب کې معنا شوې دي پـه تختـه ولیکي.<br>٢ـ د زده‌کوونکـو پاملرنـه خپلـو کتـابونو تـه رااړوي، لوست لولي او شـرح کـوي یـې او د لوسـت پـه اوږدو کې ستونزمنې کلمې تکراروي او په تخته یې لیکي.<br>٣ـ ښاغلی ښوونکی له یوه زده‌کوونکي څخه غـواړي، چې د تختې مخې ته راشي او لیکلي کلمې له معنا سره ووایي.<br>٤ـ بیا څو کمـزورو او ضـعیفو زده‌کوونکـو تـه ښـوونه کوي چې لوست په نوبـت ولـولي او ښـوونکی د دوی غلطی اصلاح کوي. | زده‌کوونکي لوست مطالعه کوي.<br>زده‌کوونکي لوست ته په غور توجه کوي.<br>یو زده کوونکی کلمې لولي. |

| | ۵_ ښاغلی ښوونکی زده‌کوونکي په ډلو په مناسبه توګه وېشي او دنده ورکوي، چې د یتیم د پالنې د ثواب او ده ته د ضرر او رنځ رسولو په هکله په خپلو کې بحث او مناقشه وکړي او بیا هره ډله (ګروپ) د خپل بحث حاصل او پایلې د خپل ښوونکي سره شریکې کړي.<br><br>**ارزونه:**<br>ښاغلی ښوونکی د کتاب له پوښتنو څخه زده‌کوونکي ارزوي. | ځو زده‌کوونکي لوست وایي.<br><br>زده‌کوونکي اجراء کوي. |
|---|---|---|
| ۱۰ دقیقې | **د لوست لنډیز:**<br>د یتیم پالنه داسې لوی منزلت او لویه درجه ده چې رسول الله ﷺ په دې هکله فرمایي: چې زه او هغه به په جنت کې یو ځای اوسېږو. د اسلام مقدس دین موږ د یتیم کفالت او پالنې ته رابولي، نو باید بډای مسلمان د یتیمانو په اړه بې تفاوته نه وي، باید هغوی ونازوي او حتٰی باید زیار وباسي، چې یتیمانو ته د ښوونې او روزنې زمینه جوړه کړي. د یتیمانو پالنه سربیره په اخروي اجرونو او ثوابونو ټولنیزې ګټې هم لري. | زده‌کوونکي د لوست لنډیز ته غوږ نیسي. |
| ۵ دقیقې | **کورنۍ دنده:**<br>ښاغلی ښوونکی د درسي کتاب د ښوونې سره سم زده‌کوونکو ته کورنۍ دنده ساري. | زده‌کوونکي خپلې کورنۍ دندې اخلي. |

**لسم لوست**:

**عنوان:** مرسته او همکاري

**صفحه:**

**وخت:** یو درسي ساعت

**موخې:** زده کوونکي باید:

۱_ د حدیث شریف متن صحیح ولوستلی شي.

۲_ د لوست مفهوم زده کړی شي.

۳_ په دوی کې د نورو خلکو په هکله د مرستې روحیه پیدا کړی شي.

٤_ د لوست نصیحتونه په خپل ژوندانه کې عملي کړای شي.

**اضافي معلومات**

رسول اللهﷺ په لاندې حدیثو شریفو کې د مسلمانانو یو د بل سره د مرستې، همکارۍ او غمخوارۍ په هکله غوره لارښوونې کړې دي چې د یوه مسلمان دریځ د نورو مسلمانانو په وړاندې څرګندوي:

((عن ابي موسیٰ عن رسول اللهﷺ قال: المؤمن للمؤمن کالبنیان یشد بعضه بعضا ثم شبک بین اصابعه، و متفق علیه))

ژباړه: حضرت ابوموسیٰ اشعريؓ د رسول اللهﷺ څخه روایت کوي چې رسول اللهﷺ وفرمایل: د یوه مؤمن دریځ د بل مؤمن په هکله د یوې آبادۍ خښتو په څېر دی چې یوه او بله سره ټینګوي، یعنې مسلمانان باید د خښتو په شان د یو او بل په تقویت او محکمۍ کې ثابت ولاړ وي، بیا رسول اللهﷺ د مطلب د ښه څرګندېدو لپاره خپلې مبارکې ګوتې په یوه بله کې داخلې کړې.

په بل حدیث کې راځي: ((**عن انس قال رسول اللهﷺ انصر اخاک ظالماً او مظلوماً فقال رجل یا رسول اللهﷺ انصره مظلوماً فکیف انصر ظالماً قال تمنعه من الظلم فذلک نصرک، متفق علیه**)).

ژباړه: له حضرت انسؓ څخه روایت دی چې رسول اللهﷺ وفرمایل: د خپل ورور سره مرسته وکړه که ظالم وي یا مظلوم، نو یوه سړي وویل ای د الله رسوله! د مظلوم سره خو به مرسته وکړم، نو د ظالم سره څرنګه مرسته وکړم؟ رسول اللهﷺ وفرمایل ظالم له ظلم څخه بند او منع کړه. دا ستا مرسته ده له ده سره.

**عن نعمان بن بشیر قال، قال رسول اللهﷺ تری المؤمنین في تراحمهم وتوادهم و تعاطفهم کمثل الجسد اذا اشتکی عضوا تداعی له سائرالجسد بالسهر والحمی، متفق علیه.**

ژباړه: د حضرت نعمان بن بشیرؓ څخه روایت دی چې رسول اللهﷺ وفرمایل چې مسلمانان په رحم کولو کې په صله رحمۍ کې او په مهربانۍ او زړه سوي کې یو له بل سره د یوه بدن په شان دي، یعنې هر کله چې یو غړی په درد راشي، ټول غړي ورسره دردمند کیږي او ټول غړي ورسره بې خوبي او تبه زغمي.

**د تدریس طریقه:** په یوازې توګه، ډله ییزه، پوښتنې او ځوابونه، تشریحي.

**د لوست مرستندویه توکي:** تخته، تباشیر، کتاب ...

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ٥ دقیقې سریزه | ښاغلی ښوونکی له سلام ویلو، روغبړ کولو، ټولګي منظمولو او کورنی دندې له کتلو وروسته تېر شوی لوست په دې ډول ارزوي.<br>څوک یتیم تعریف کولی شي؟<br>بیا د انګېزې او هڅونې د پیدا کېدو لپاره د زده‌کوونکو څخه د نوي لوست د عنوان په هکله پوښتنه کوي.<br>مسلمانان یو د بل په هکله څه مسؤولیتونه لري؟ | زده‌کوونکي د ټولګي نظم مراعاتوي.<br>زده‌کوونکي ځوابونه وايي. |
| ۲۵ دقیقې | **د لوست بهیر:**<br>۱ـ ښاغلی ښوونکی د ځواب له حاصلولو نه وروسته د نوي لوست عنوان (مرسته او همکاري) د یوه شاګرد په واسطه په لوی خط په تخته لیکي.<br>بیا زده کونکو ته دنده سپاري چې لوست په پټه خوله مطالعه کړي او ستونزمن ځایونه په نښه کړي او ښوونکی په عین حال کې مشکلې کلمې په تخته له معنا سره لیکي.<br>۲ـ بیا دوه زده‌کوونکي د تختې مخې ته راغواړي او لارښوونه ورته کوي، چې یو تن د لوست بغلي عنوانونه د څو معنا شوو کلمو سره د کتاب له مخې ولولي او بل یې ولیکي.<br>۳ـ بیا ښاغلی ښوونکی دریو تنو زده‌کوونکو ته لارښوونه کوي چې هر یو د لوست یوه برخه ووايي.<br>٤ـ ښاغلی ښوونکی د بغلي عنوانونو څخه په ګټې اخیستلو سره لوست زده‌کوونکو ته شرح کوي.<br>٥ـ ښاغلی ښوونکی د کتاب فعالیت او هڅونه د ښوونې سره سم اجرا کوي.<br>**ارزونه:**<br>ښاغلی ښوونکی د خپل اطمینان او ډاډینې لپاره زده‌کوونکي د کتاب له پوښتنو څخه په څو پوښتنو ارزوي. | یو زده کوونکی د لوست عنوان لیکي.<br>زده‌کوونکي مطالعه کوي.<br>یو زده کوونکی یې وايي بل یې لیکي.<br>زده‌کوونکي د لوست تشریح ته پاملرنه کوي. |
| ۱۰ دقیقې | **د لوست لنډیز:**<br>مسلمان د مسلمان ورور دی، نو ځکه یو او بل ته نه ښايي چې په خپل ورور ظلم وکړي او یا هغه دښمن ته وسپاري. هر څوک چې دخپل مسلمان ورور په هکله احساس ولري او له هغه ستونزې خپلې ستونزې وګڼي او د هغه څخه د ستونزو په لرې کولو کې هلې ځلې کوي الله ﷻ د هغه د دنیا او آخرت ستونزې لرې کوي. | زده‌کوونکي دلوست لنډیز ته غوږ نیسي. |
| ٥ دقیقې | **کورنۍ دنده:**<br>ښاغلی ښوونکی د کتاب د لارښوونې سره سم زده‌کوونکي د کورنۍ دندې په سرته رسولو مکلفوي. | زده‌کوونکي خپلې کورنۍ دندې اخلي. |

## يوولسم لوست:

**عنوان:** د مسلمان صفتونه

**صفحه:**

**وخت:** يو درسي ساعت

**موخې:** زده‌کوونکي بايد:

١_ د حديث شريف متن صحيح ولوستلی شي.

٢_ د لوست مفهوم ياد کړی شي.

٣_ د صفتونو ارزښت په ذهن کې ځای ونيسي.

٤_ خپل ځانونه په غوره صفتونو وستايلی شي.

**اضافي معلومات:**

په دې مبارک حديث کې رسول الله ﷺ فرمايي: واقعي او رښتينی مسلمان هغه دی چې نور مسلمانان يې د ژبې او لاس له زيان څخه په امن کې وي او په بل حديث شريف کې عبدالله بن عمر رضي الله عنه روايت کوي چې رسول الله وفرمايل: ((ان رجلا قال يا رسول الله مالمسلم فقال رسول الله ﷺ من سلم المسلمون من لسانه و يده)).

ژباړه: يوه سړي له رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وکړه چې ای د الله رسوله! مسلمان څوک دي؟

نبي کريم ﷺ وفرمايل مسلمان هغه دی چې بل مسلمان يې د ژبې او لاس له شر او زيان څخه ډاډمن وی.

هو! په دې مبارک حديث کې وينو چې سول الله ﷺ يوه مسلمان ته ضرر رسول، آزار او رنځ ورکول حرام ګڼلي دي، ځکه دا دوه لاملونه (د ژبې او لاس ضرر) د مسلمانانو د وينو تويېدو، عزت او آبرو لامل ګرځي. آرامي او صلح له منځ وړي، نو که څوک غواړي چې بشپړ مسلمان واوسي او د قوي ايمان څخه برخمن وي، بايد هېڅکله نورو ته ضرر او رنځ ونه رسوي.

**د کلماتو معناوې:**

آبرو: عزت

سلم: جوړ پاتې شي

**د تدريس طريقه:** پوښتنې او ځوابونه، انفرادي، ګروپي او تشريحي.

**د لوست مرستندويه توکي:** کتاب، تخته، تباشير، او داسې نور.

| وخت | د ښوونکي فعاليتونه | د زده‌کوونکو فعاليتونه |
|---|---|---|
| ٥ دقيقې سريزه | ښاغلی ښوونکی له سلام ورکولو، روغبړ کولو، ټولګي منظمولو او کورنی دندې له کتلو وروسته تېر شوې لوست ارزوي.<br>څوک ويلای شي چې د مسلمانانو اړيکې يو له بل سره بايد څرنګه وي؟<br>بيا د انګېزې او هڅونې د پيدا کېدو لپاره د نوي لوست د عنوان په هکله له زده‌کوونکو څخه پوښتنه کوي.<br>څوک ويلای شي چې د ژبې ساتنه د ناوړو خبرو څخه د چا لپاره مناسبه ده؟<br>**د لوست بهير:**<br>١_ ښاغلی ښوونکی د ځواب له حاصولو وروسته د لوست عنوان | زده‌کوونکي د ټولګي نظم مراعاتوي.<br>زده‌کوونکي ځوابونه ورکوي.<br>يو زده کوونکی يې ليکي.<br>يو زده کوونکی عنوانونه ليکي. |

| | | |
|---|---|---|
| ۲۵ دقیقې | (د مسلمان صفتونه) د یوه زده‌کوونکي په واسطه په لوی او واضح خط په تخته لیکي.<br>۲ــ ښاغلی ښوونکی یو بل زده کوونکی تختې ته راغواړي او ښوونه ورته کوي، چې د لوست بغلي عنوانونه له معنا شوو کلمو سره ولیکي.<br>۳ــ ښاغلی ښوونکی زده‌کوونکو ته ښوونه کوي، چې لوست له ځان سره مطالعه او مشکل ځایونه په نښه کړي او په خپله په عین وخت کې نوې کلمې له معنا سره په تخته لیکي.<br>٤ــ ښاغلی ښوونکی د حدیث شریف متن د یوه زده‌کوونکي په وسیله او پاتې لوست د څو تنو په واسطه په مناسب آواز سره وایي او د لوستلو په اوږدو کې له ټولو سره مرسته کوي او تشویقوي یې.<br>٥ــ ښاغلی ښوونکی د لوست د بغلي عنوانونو څخه په ګټې اخیستلو سره لوست زده‌کوونکو ته شرح کوي.<br>ــ ښاغلی ښوونکی زده‌کوونکو ته ښوونه کوي، چې د تختې کلمې په خپلو کتابچو کې ولیکي.<br>٦ــ ښاغلی ښوونکی له زده‌کوونکو څخه غواړي، چې د لوست فعالیت د ښوونې سره سم سرته ورسوي.<br>**ارزونه:**<br>ښاغلی ښوونکی د خپلې ډاډینې لپاره زده‌کوونکي د کتاب په پوښتنو ارزوي. | زده‌کوونکي لوست مطاله کوي.<br>زده‌کوونکي خپلو کتابونو ته ګوري.<br>زده‌کوونکي د لوست شرحې ته غوږ نیسي.<br>زده‌کوونکي فعالیت اجراء کوي.<br>زده‌کوونکي ځوابونه ورکوي. |
| ۱۰ دقیقې | **د لوست لنډیز:**<br>د اسلام مقدس دین د خیر غوښتنې دین دی. ټول مسلمانان د ژبې او لاس له زیان او ضرر رسولو څخه ساتي او هر ډول ژبني او فزیکي تیری او تجاوز محکوموي، نو له دې امله مسلمان باید د خپل ایمان او اسلام د ساتلو لپاره خپله ژبه د ناوړه خبرو او خپل لاس له ضرر رسولو څخه وژغوري. | زده‌کوونکي د لوست لنډیز ته غوږ نیسي. |
| ٥ دقیقې | **کورنی دنده:**<br>ښاغلی ښوونکی د کتاب له لارښوونې سره سم کورنی دنده ورکوي. | زده‌کوونکي خپله کورنی دنده اخلي. |

## دولسم لوست:

**عنوان:** د اسلام پنځه بناوې

صفحه:

**وخت:** يو درسي ساعت

**اهداف (موخې):** زده‌کوونکي بايد:

۱_ د حديث شريف متن صحيح ولوستلی شي.

۲_ د اسلام پنځه ارکان وپېژني.

۳_ د ارکانو په ارزښت وپوهېږي او په خپل ژوندانه کې يې عملي کړی شي.

**اضافي معلومات:**

زكوة په لغت کې د پاکۍ او تزکيې په معنا دی او د شرعې په محاوره کې د مال يوه برخه ده چې د فرضو د اداء په نيت د الله د رضا او خوشحالۍ لپاره د هغه نصاب موافق چې د الله تعالی له خوا ټاکل شوی، معينو خلکو ته ورکول کيږي.

حج: په لغت کې د قصد کولو په معنا دی او د شرعې په اصطلاح کې د الله ﷻ د کور زيارت کول په خاصو وختونو کې او په خاصو افعالو سره او په خاصو شرطونو سره د فرضو د اداء او الله ته د نيږديوالي حاصلولو په نيت.

روژه: په لغت کې د ځان ژغورلو په معنا ده او د شرعې په اصطلاح کې د خوړلو، څښلو او جماع کولو او نورو هغه کړو وړو څخه ځان ژغورنه ده چې د رښتيني سبا راختلو څخه تر لمر ډوبېدو پورې له هغو څخه منع راغلې ده.

په دې حديث کې د اسلام پنځه بناوې ذکر شوي دي چې د اسلام له مهمو او غوره بنسټونو او اصولو څخه ګڼل کيږي او په باوري توګه اسلام په هغو ټينګ او ثابت ولاړ دی، دا پنځه ارکان د توحيد له کلمې لا الا الله محمد رسول الله، د لمانځه ادا کول، د زکوة ورکول او د رمضان د مياشتې روژه نيول او د بيت الله شريف د فريضې اداء کول دي.

**د کلماتو معناوې:**

بيت الله: د الله ﷻ خونه، نسبت يې الله ته د تعظيم له کبله دی.

تزکيه: پاکي

بناوې: بنسټونه او اصلونه

**د تدريس طريقه:** پوښتنې او ځوابونه، انفرادي، ګروپي او تشريحي.

**د لوست مرستندويه توکي:** کتاب، تخته، تباشير، کتابچه او قلم.

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه |
| --- | --- | --- |
| ۵ دقیقې سریزه | ښاغلی ښوونکی له سلام ورکولو، روغبړ کولو، د ټولګي منظمولو او د کورنۍ دندې له کتلو وروسته تېر شوی لوست د څو پوښتنو په ترڅ کې ارزوي.<br>آیا کامل مؤمن چا ته ویل کیږي؟<br>بیا د هڅونې او د نوي لوست د عنوان پیدا کېدلو په هکله له زده‌کوونکو څخه پوښتنې کوي.<br>څوك د اسلام پنځه ارکان بیانولی شي؟ | زده‌کوونکي د ټولګي نظم مراعاتوي.<br>زده‌کوونکي ځواب ورکوي.<br>او بل زده‌کوونکی د لوست عنوان په تخته لیکي. |
| ۲۵ دقیقې | **د لوست بهیر:**<br>۱ـ ښاغلی ښوونکی د ځواب حاصلولو د لوست عنوان (د اسلام پنځه بناوې) دیوه زده‌کوونکي په واسطه په واضح خط په تخته لیکي.<br>ښاغلی ښوونکی زده‌کوونکو ته لارښوونه کوي، چې لوست مطالعه کړي او ستونزمن ځایونه په نښه کړي. ښوونکی په خپله په عین وخت کې د لوست بغلي عنوانونه د بیت الله او تزکیې کلمې سره له معناوو په تخته لیکي.<br>۲ـ ښاغلی ښوونکی یو زده کوونکی تختې ته راغواړي او ښوونه ور ته کوي، چې د حدیث شریف متن د کتاب له مخې ووایي او پاتې لوست په نورو زده‌کوونکو په ځانګړې توګه په هغو زده‌کوونکو ولولي چې په ویلو کې ستونزه لري.<br>۳ـ ښاغلی ښوونکی د زده‌کوونکو پاملرنه ځان ته رااړوي او د بغلي عنوانونو په مرستې سره لوست شرح کوي.<br>٤ـ ښاغلی ښوونکی زده‌کوونکو ته ښوونه کوي، چې کلمې د تختې له مخې په خپلو کتابچو کې ولیکي.<br>۵ـ ښاغلی ښوونکی لهٔ زده‌کوونکو څخه غواړي، چې د کتاب فعالیت د لارښوونې سره سم اجراء کړي.<br>**ارزونه:**<br>ښاغلی ښوونکی زده‌کوونکي د کتاب د پوښتنو په ترڅ کې ارزوي. | یو زده کوونکی ځواب ورکوي.<br>زده‌کوونکي لوست مطالعه کوي.<br>زده‌کوونکي د لوست شرحې ته غوږ نیسي.<br>زده‌کوونکي پوښتنو ته ځوابونه وایي. |
| ۱۰ دقیقې | **د لوست لنډیز:**<br>د اسلام مقدس دین پنځه بستیز ارکان لري چې د کلمې له ویلو، د لمانځه اداء کولو، روژې نیولو، زکوة ورکولو او د وس په صورت کې د بیت الله شریف حج کولو څخه عبارت دي. دا ارکان د الله له طرفه په مسلمانانو په قطعي توګه فرض شوي دي چې په فرضیت کې یې هیڅ شك او شبهه وجود نه لري او له هر یوه څخه انکار کفر دی. | زده‌کوونکي د لوست لنډیز ته غوږ نیسي. |
| ۵ دقیقې | **کورنۍ دنده:**<br>ښاغلی ښوونکی زده‌کوونکي د کورنۍ دندې په رسولو ګماري. | زده‌کوونکي کورنۍ دنده اخلي. |

**دیارلسم لوست**:

**عنوان:** حیاء

**صفحه:**

**وخت:** یو درسي ساعت

**اهداف (موخې):** زده‌کوونکي به:

۱_ د حدیث شریف متن صحیح وویلی شي.

۲_ د لوست په مفهوم به وپوهېدای شي.

۳_ د حیاء او پاك لمنۍ په ارزښت به وپوهېږي.

**اضافي معلومات:**

حیاء هغه صفت دی چې انسان ښو او نېکو کارونو ته هڅوي او له بدو او ناوړه کارونو څخه یې ژغوري. حیاء ضروري او مطلوب امر دی چې د اسلام مقدس دین ورباندې تاکید کړی دی. نبي کریمﷺ د حضرت عثمانؓ د حیاء په باره کې فرمایلي دي: ((**الحیاء من الایمان و احیا امتی عثمان**)).

ژباړه: حیاء له ایمان څخه ده او تر ټولو زیات حیاناك زما د امت حضرت عثمانؓ دی.

له دې حدیث څخه معلومېږي چې نبي کریمﷺ د حضرت عثمان له ټولو صفتونو څخه غوره صفت حیاء ګڼلی دی، سره له دې چې حضرت عثمانؓ په نورو نېکو صفتونو هم ستایل شوی و، خو نبي کریﷺ د ده له صفتونو څخه حیا لوی صفت ګڼلی دی، نو حیاء هغه مهم او غوره صفت دی چې انسان همیشه د کامیابۍ او خلاصون لارو ته سوق کوي.

د نبي کریمﷺ له دې مبارکې وینا څخه څرګندېږي چې نبي کریمﷺ به په کومه کچه حیاء درلودله، په یوه حدیث کې راغلي دي چې تاسو د اللهﷻ څخه په حقیقي توګه حیاء وکړئ او بیا فرمایي: حیاء دا ده چې انسان خپله خوله، سترګې او غوږونه له هر هغه څه نه چې اسلام منع کړي وساتي.

که چېرې اسلامي ټولنه د کفري ټولنې سره پرتله کړو وبه وینو چې د دوی دواړو ترمنځ لوی تفاوت او واټن شته، هر کله چې اسلامي ټولنه حیاء ته چې د اصلي پلیتیو او نافرمانیو څخه منع کوونکې ده په دومره ارزښت قایل ده او د حیاء ساتلو په خپل انتهایي لټون په کار اچوي، خو غیر اسلامي ټولنه نه دې ارزښتونو ته په څه قدر او قیمت اعتراف کوي او نه د حیاء په باره کې کوم شعار لري، نو نتیجه دا راوځي چې په غیر اسلامي ټولنه کې په هغه کچه مرضونه، فسادونه او ستونزې وجود لري چې د حکایت او کیسې وړ نه دي.

**د کلماتو معناوې:**

سوق: روانوي یې

قایل: ویونکی، اعتراف کوونکی

**د تدریس طریقه:** پوښتنې او ځوابونه، انفرادي، ګروپي او تشریحي.

**د لوست مرستندویه توکي:** کتاب، کتابچه، قلم، تخته او تباشیر او داسې نور.

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې سریزه | ښاغلی ښوونکی له سلام ورکولو، روغبړ، ټولګي تنظیمولو او د کورنۍ دندې له کتلو وروسته تېر شوی لوست دا رنګه ارزوي.<br>څوک لاندې کلمې بنې او خمس معنا کولی شي؟<br>بیا د هڅونې پیدا کولو او د نوي لوست د عنوان حاصلولو په هکله له زده کوونکو څخه پوښتنې کوي.<br>آیا د حیا کلمې په هکله څه معلومات ورکولی شئ؟ | زده کوونکي د ټولګي نظم مراعاتوي.<br>زده کوونکي ځواب ورکوي. |
| ۲۵ دقیقې | **د لوست بهیر:**<br>۱ـ ښاغلی ښوونکی وروسته له ځواب حاصلولو د نوي لوست عنوان (حیاء) په تخته لیکي او زده کوونکو ته لارښوونه کوي، چې لوست مطالعه کړي او دی په خپله په عین وخت کې ستونزمنې کلمې له معناوو سره په تخته لیکي.<br>۲ـ ښاغلی ښوونکی له دوو زده کوونکو څخه غواړي، چې تختې ته راشي یو معنا شوې کلمې او بل د لوست بغلي عنوانونه په واضح خط په تخته ولیکي.<br>۳ـ ښاغلی ښوونکی له یوه زده کوونکي څخه غواړي، چې د حدیث راوي د کتاب له مخې راوپېژني.<br>٤ـ ښاغلی ښوونکی د زده کوونکو پاملرنه خپلو کتابونو ته رااړوي او لوست شرح کوي.<br>۵ـ ښاغلی ښوونکی د کتاب فعالیت د لارښوونې سره سم سر ته رسوي.<br>**ارزونه:**<br>ښاغلی ښوونکی د کتاب له پوښتنو څخه زده کوونکي ارزوي. | زده کوونکي لوست مطالعه کوي.<br>زده کوونکي عمل کوي.<br>یو زده کوونکی د حدیث شریف راوي معرفي کوي.<br>زده کوونکي اجراء او عمل کوي.<br>زده کوونکی ځواب ورکوي. |
| ۱۰ دقیقې | **د لوست لنډیز:**<br>په یقیني توګه حیاء د ایمان له مهمو او غوره څانګو څخه یوه څانګه ده، لکه څنګه چې ایمان بنده د ناوړو کارونو څخه منع کوي، دا رنګه حیاء هم بنده د ناوړو کارونو څخه ژغوري او د نېکو کارونو په عملي کولو یې تشویقوي. | زده کوونکي د لوست لنډیز ته غوږ نیسي. |
| ۵ دقیقې | **کورنۍ دنده:**<br>ښاغلی ښوونکی د کتاب د لارښوونې سره سم زده کوونکو ته کورنۍ دنده ورکوي. | زده کوونکي خپله کورنۍ دنده اخلي. |

## ځوارلسم لوست:

**عنوان:** نشه يي توکي

**صفحه:**

**وخت:** يو درسي ساعت

**اهداف (موخې):** زده‌کوونکو ته ښايي چې د لوست په پای کې دغو موضو ته ورسيږي:

۱_ د حديث شريف متن صحيح ولوستلی شي.

۲_ د لوست په مفهوم پوهه شي.

۳_ د نشه يي توکو له ضررونو او نقصانونو څخه به خبر شي.

٤_ په زده‌کوونکو کې به له دې توکو څخه د پرهېز او ژغورنې روحيه پيدا شي.

**اضافي معلومات:**

رسول اللهﷺ په دې مبارک حديث کې له نشه يي توکو څخه منع کړی ده، ځکه نشه له هغو مضرو شيانو څخه ده چې نه يوازې په خپله فرد ته ضرر رسوي، بلکې ټوله کورنی او ټوله ټولنه د تباهی، فساد او بد اخلاقيو او بې حياييو سره مخ کوي.

په بل حديث شريف کې راغلي چې رسول اللهﷺ فرمايي: په بني اسرائيلو کې يوې ښځې يو سړی ځانته راوغوښته او هغه ته يې په دريو کارونو کې واک او اختيار ورکړ: اول دا چې شراب وڅښي. دويم يا له دې سره زنا وکړي. دريم يا هغه ماشوم چې هلته و هغه ووژني.

نبي کريمﷺ فرمايي: چې دې سړي د شرابو څښلو ته غوره والی ورکړ او هغه يې وڅښل، نو وروسته نشه شو او له هغه ښځې سره يې زنا وکړه او هغه ماشوم يې هم وواژه.

له دې حديث شريف څخه معلومه شوه چې شراب تر ټولو فسادونو څخه غټ فساد ګڼل کېږي او په بل حديث کې راځي: ((الخمر رأس الفواحش))، يعنې شراب د ټولو فحشاوو او بې حياييو سرچينه ده.

**د کلماتو معناوې:**

امهات المؤمنين: د مؤمنانو مياندې

رأس: سر، منبع

**د تدريس طريقه:** انفرادي، ګروپي، پوښتنې او ځوابونه، تشريحي.

**د لوست مرستندويه توکي:** کتاب، تخته، تباشير، د نشه يي توکو د ډولونو چارټ.

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه |
| --- | --- | --- |
| ۵ دقیقې سریزه | ښاغلی ښوونکی له سلام ورکولو، روغبړ، د ټولګي منظم کولو او د کورنی دندې له کتلو وروسته تېر شوی لوست ارزوي. | زده‌کوونکي د ټولګي نظم مراعاتوي. |
| | ځوک ویلای شي چې د انسان په ژوندانه باندې حیاء څه اغېزه لري؟<br>بیا د انګېزې پیدا کولو او د نوي لوست له عنوان حاصلولو څخه وروسته د زده‌کوونکو څخه پوښتنې کوي. | زده‌کوونکي ځواب ورکوي. |
| | په اوسنیو ټولنو کې هغه څه چې د انسان جسم له منځه وړي او ان تر دې چې د مرګ لامل جوړېږي څه دي؟<br>**د لوست بهیر:**<br>۱_ ښاغلی ښوونکی وروسته له ځواب حاصلولو، د لوست عنوان (نښه یي توکي) د یوه زده‌کوونکي په واسطه په واضح او ښایسته خط په تخته لیکي او بیا زده‌کوونکو ته ښوونه کوي، چې لوست مطالعه کړي او ستونزمن ځایونه په نښه کړي او په خپله ښوونکی په عین وخت کې د لوست کلمې: امهات المؤمنین رأس او داسې نورې له معنا سره په تخته لیکي. | زده‌کوونکي لوست مطالعه کوي. |
| ۲۵ دقیقې | ۲_ ښاغلی ښوونکی د یوه زده‌کوونکي په واسطه د لوست بغلي عنوانونه د ځینو معنا شوو کلماتو څخه په تخته لیکي، بیا له یوه بل زده‌کوونکي څخه غواړي، څو عنوانونه او کلمې د تختې له مخې په مناسب آواز ووایي. | زده‌کوونکي عمل کوي. |
| | ۳_ ښاغلی ښوونکی لوست د څو زده‌کوونکو په واسطه په نوبت سره وایي او له هغوی سره د لوست په اوږدو کې مرسته کوي او لا یې تشویقوي. | |
| | ٤_ ښاغلی ښوونکی د لوست د بغلي عنوانونو په مرستې سره لوست د زده‌کوونکو لپاره تشریح کوي.<br>_ زده‌کوونکو ته دنده سپاري، چې د تختې په مخ لیکل شوې کلمې په خپلو کتابچو کې ولیکي. | زده‌کوونکي د لوست شرحې ته غوږ نیسي. |
| | ۵_ ښاغلی ښوونکی د کتاب فعالیت د لارښوونې سره سم سرته رسوي. | |
| | **ارزونه:**<br>ښاغلی ښوونکی د خپل اطمینان او ډاډ په خاطر د کتاب له پوښتنو څخه زده‌کوونکي ارزوي. | زده‌کوونکي اجراء او عمل کوي. |

| ۱۰ دقیقې | **د لوست لنډیز:**<br>د انسان جسم، عقل او فکر د الله له نعمتونو څخه یو نعمت دی، نو انسان ته لازم دي چې د دې نعمتونو شکر د الله په عبادتونو او نېکو کارونو کولو اداء کړي، همدا عقل او سوچ دی چې انسان ته په نورو حېواناتو غوره والی او بهتري ورکوي.<br>نشه يي توکي تر ټولو لوی دښمن دی، د انسان لوړ او عالي شان چې انسانیت په حېوانیت بدلوي او آن تر دې چې مرګ ته هم رسېدای شي. | زده کوونکي د ښوونکي پوښتنوته ځوابونه وايي. |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | **کورنۍ دنده:**<br>ښاغلی ښوونکی زده کوونکي په کورنۍ دندې مکلف کوي. | زده کوونکي خپله کورنۍ دنده اخلي. |

## لومړی لوست:

**سرلیک:** **د سیرت النبي ارزښت.**

**وخت:** **یو درسي ساعت (٤٥ دقیقې)**

**موخې: زده‌کوونکي باید:**

١. سیرت په لغت او اصطلاح کې وپېژني.
٢. د سیرت له مهمو موضوعاتو سره آشنا شي.
٣. د سیرت النبي د ځانګړتیاوو په هکله معلومات ترلاسه کړي.
٤. د سیرت النبي د ارزښت له امله د سیرت النبي زده‌کړې ته لېواله شي.

**ښوونکي ته اضافي معلومات:**

**د آیت شان نزول:**

کله چې د احزابو په غزوه کې مسلمانان له سختۍ سره مخامخ شول الله تعالی ورته دا آیت نازل کړ: ﴿ لَّقَدۡ كَانَ لَكُمۡ فِي رَسُولِ ٱللَّهِ أُسۡوَةٌ حَسَنَةٞ﴾[الأحزاب: ٢١ ] ستاسې د اقتدا لپاره د الله رسولﷺ (په صبر او مجاهده کې) غوره نمونه دی.

**سیرت:** د پیغمبرﷺ د ژوند له حالاتو، کړنو، ویناوو او تقریر څخه عبارت دی.

**تقریر:** دې ته ویل کیږي چې صحابه و یو کار کړی وي او رسول اللهﷺ له خبرېدو وروسته هغه کار رد کړی نه وي.

**د خلکو ضرورت پیغمبرانو ته:**

انسانان د ژوند په ټولو حالاتو کې لارښود ته ضرورت لري، د دې لپاره چې انسان لاره ورکه نه کړي او په تور تم کې پاتې نه شي الله تعالی د دوی د لارښوونې لپاره رسولان او پیغمبران رالیږلي دي.

**اولو العزم رسولان:**

اولوالعزمه رسولان پنځه تنه دي چې له حضرت نوح، حضرت ابراهیم، حضرت موسی، حضرت عیسی او حضرت محمد صلوات الله علیهم اجمعین څخه عبارت دي .

**رسول او نبي:**

نبي عام دی او رسول خاص دی، پدې معنا چې هر رسول نبي هم دی او هر نبي رسول نه دی .

ځینې علماء وایي چې رسول او نبي فرق نه لري الفاظ یې مختلف او معنی یې یوه ده.

ځینې علماء وایي رسول هغه دی چې ځانګړی کتاب ولري او نبي هغه دی چې له الله تعالی څه اخبار کوي اګر که خپل کتاب ونه لري.

ځینې علماء وایي رسول هغه دی چې الله تعالی له نوي شریعت سره لیږلی وي او نبي هغه څوک دی چې الله تعالی د مخکې شریعت د تبلیغ او ترویج لپاره را لیږلی وي، لکه د موسیعليه السلام څخه وروسته د بني اسرائیلو انبیاء تر هغه چې الله تعالی عیسیعليه السلام له نوي او مستقل کتاب سره راولیږه.

**په قرآن کریم کې د لاندینیو ٢٥ پیغمبرانو نومونه راغلي دي:**

آدم، ادریس، نوح، ابراهیم، اسحق، اسماعیل، یعقوب، یوسف، هود، شعیب، صالح، ذوالکفل، داؤد، سلیمان، ایوب، موسی، هارون، زکریا، یحیی، الیاس، یسع، یونس، لوط، عیسی او محمد صلوات الله علیهم.

**د تدریس طریقي :**

توضیحي، مباحثوي، پوښتنې او ځوابونه.

**د لوست مرستندويه توکي:** درسي کتاب ، د سيرت او تاريخ کتابونه، تخته او تباشير .

**د لوست بهير:**

| وخت | د ښوونکي فعاليت | د زده‌کوونکو فعاليت |
|---|---|---|
| ۵ دقيقې | **سريزه:**<br>ښاغلي ښوونکی ټولګي ته د داخليدو سره سم سلام اچوي، وروسته له حمد او ثنا څخه زده‌کوونکو ته خپل ځان معرفي کوي ، حاضري اخلي ، اووم ټولګي ته د زده‌کوونکو د بري او نوي درسي کال مبارکي وايي، درس ته دزده‌کوونکو دهڅونې لپاره د سيرت النبي په اړه عمومي معلومات وړاندې کوي او وايي: تاسې به سږ کال ان شاء الله د سيرت النبي په مضمون کې د سيرت دعلم له – تعريف او ارزښت- څخه نيولې تر – پېټي بلنې - پورې موضوعات ولولئ او په هکله به يې هر اړخيز معلومات تر لاسه کړئ بيا د لوست موضوع پر تخته ليکي او په لوست پيل کوي. | زده‌کوونکي دې په ډېر درنښت د خپل ښوونکي د سلام ځواب ووايي، بيا دې د حاضرۍ پر مهال هريو خپل ځان معرفي کړي او د ښوونکي خبرې دې په غور واوري . |
| ۲۵ دقيقې | **د لوست وړاندې کول:**<br>ښاغلی ښوونکی له زده‌کوونکوڅخه غواړي چې د لوست متن په ورو ولولي او پخپله د لوست جانبي سرليکونه پر تخته ليکي ، بيا دلوست عبارت په څو تنو زده‌کوونکو لولي او هغوی ته لاندې مطالب او مفاهيم په ساده او لنډو عباراتوسره داسې تشريح کوي ترڅو د هرې سويې زده‌کوونکي ورڅخه ګټه واخلي.<br>۱. د سيرت النبي پيژندنه په لغت او اصطلاح کې.<br>۲. د سيرت النبي اړوند موضوعات.<br>۳. د سيرت النبي ارزښت.<br>٤. د سيرت النبی صلی الله عليه وسلم د لوستلو دنيوي او اخروي ګټې .<br>ښاغلی ښوونکی د لوست مفهوم بيانوي، زده‌کوونکو ته د خپلو رايو د ښکاره کولو جرأت او موقع ورکوي، د لوست په اړه د هغوی پوښتنو ته غوږ نيسي او د صميميت په فضا کې ورته سم ځواب ورکوي.<br>په لوست کې ورکړل شوی فعاليت په خپل ځای کې له زده‌کوونکو سره مطرحوي.<br>په آخر کې د لوست خلاصه او لنډيز په مناسبو او لنډو عباراتو سره زده‌کوونکو ته وړاندې کوي. | زده‌کوونکي دې خپلو کتابونو ته ځير شي.<br>د مطالبو د تشريح پرمهال دې ښوونکي ته غوږ ونيسي<br>زده‌کوونکي دې د فعاليت په اجرا کې فعاله ونډه واخلي<br>زده‌کوونکي دې په خپلومينځو کې مباحثه وکړي.<br>د لوست مهم مطالب دې له ځان سره وليکي |
| ۵ دقيقې | **د لوست لنډيز:**<br>د نبي کريم ﷺ سيرت د هغه صلی الله عليه وسلم له ميلاد څخه نيولې تر وفات پورې ټول واقعات بيانوي، د محمد ﷺ سيرت د داسې ځانګړتياوو درلودونکی دی چې د نورو انبياؤ عليهم السلام سيرتونه ترې بې برخې دي، د پيغمبر ﷺ سيرت له فضائلو، نيکو | زده کوونکي دې غوږ شي او د خپل ښوونکي خبرې دې په غور سره واوري |

| | | |
|---|---|---|
| | اخلاقو او نصیحتونو څخه ډک دی، د اسلام د سپېڅلي دین لاره روښانه کوي، د اسلامي امت د وحدت څرګندونه کوي، د سیرت لوستل مسلمان د اسلامي فرهنګ سره آشنا کوي او د هغه د ژوندانه ارزښتناکې ګټې پرې مرتبېږي. | |
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>۱. نبوي سیرت په لغت او اصطلاح کې تعریف کړئ.<br>۲. د نبوي سیرت درې ځانګړتیاوې څرګندې کړئ.<br>۳. د نبوي سیرت د زده کړې ارزښت د مسلمانانو د ژوندانه په مختلفو اړخونو کې څرګند کړئ. | زده کوونکي دې ځواب ورکړي . |
| | **کورنۍ دنده:**<br>د دې لوست د مطالبو لنډیز د یوې لنډې مقالې په لړ کې په خپلو الفاظو ولیکئ. | ـ زده کوونکي دې کورنۍ دنده په کورونوکې ترسره کړي. |

**دويم لوست:**

**سرليک:** **نبوي سيرت او تاريخ.**

**وخت:** **يو درسي ساعت (٤٥ دقيقي)**

**موخې: زده‌کوونکي بايد:**

١. تاريخ په لغت او اصطلاح کې وپيژني.
٢. پر دې وپوهيږي چې سيرت د تاريخي بهير اساس دی.
٣. په سيرت او تاريخ کې د سند د روايت طريقې وپيژني.
٤. په دې پوه شي چې د سيرت علم په کومو زمانو کې را منځ ته شو او مشـهور کتابونـه يـې کـوم دي.

**ښوونکي ته اضافي معلومات:**

**سند:**

د راويانو د نومونو لړۍ ته سند ويل کيږي، لکه چې وايي:

فلانی له فلاني ، فلانی له فلاني ، فلانی له فلاني څخه روايت کوي .

**صحابي:**

په لغت کې ملګري ته وايي او په اصطلاح کې هغه چا ته ويل کيږي چې د اسلام په حالت کې يې له رسولﷺ سره ملاقات شوی وي او د اسلام په حالت کې وفات شوی وي.

**تابعي:**

هر هغه چا ته ويل کيږي چې له صحابي سره يې د اسلام په حالت کې ملاقات شوی وي او د اسلام پـه حالـت کـې وفات شوی وي.

**تبع تابعي:**

هغه چاته ويل کيږي چې تابعي يې د اسلام په حالت کې ليدلی وي او بيا د اسلام په حالت کې وفات شوی وي.

**مصادر:**

د مصدر جمع او مصدرکله د اسم فاعل په معنٰی راځي او کله هم د اسم مفعول په معنٰی راځي، لکه په همدې ځـای کې په دې معنا چې سيرت له دغو مصدرونو څخه اخيستل شوی دی.

**موطا:**

په لغت کې اسان کړای شوي او وروسته اقتداء کړای شوي ته ويل کيږي او دلته ترې مراد د امـام مالـک (رح) هغـه تاليف شوی کتاب دی چې د حديث او فقهې موضوعات يې رانغښتي دي .

**د تدريس طريقې:**

توضيحي ، مباحثوي ، ګروپي کار ، پوښتنې او ځوابونه .

**د لوست مرستندويه توکي :** درسي کتاب ، د سيرت او تاريخ کتابونه ، تخته او تباشير .

**د لوست بهير:**

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده‌کوونکو فعالیت |
| --- | --- | --- |
| ۵ دقیقې | **سریزه :**<br>ښاغلی ښوونکی ټولګي ته له ننوتلو سره سم سلام اچوي، وروسته د زده‌کوونکو د حا ل پوښتنه کوي، د ټولګی نظم جوړوي، حاضري اخلي، او د ناسوبو زده‌کوونکو د غیر حاضرۍ د لامل پوښتنه کوي.<br>ښاغلی ښوونکی د تیر لوست په اړه لنډې پوښتنې کوي، مثلاً یوه زده‌کوونکي ته وایي: سیرت او تاریخ جلا جلا تعریف کړه او یو له بل سره یې توپیر په ګوته کړه. د صحیح ځواب په اورېدلو سره د نن ورځې د لوست سرلیک پر تخته لیکي او په لوست پیل کوي . | زده‌کوونکي دې په ډېر درنښت د خپل ښوونکي سلام ته وعلیکم السلام ووایي، د خپل نوم په اورېدلو دې د حاضرۍ ځواب ورکړي، د ټولګي په تنظیم کې دې له ښوونکي سره پوره مرسته وکړي زده‌کوونکی دې ځواب ووایي. |
| ۲۵ دقیقې | **د لوست وړاندې کول:**<br>ښاغلی ښوونکی له زده‌کوونکوڅخه غواړي چې د لوست متن په ورو ولولي او پخپله د لوست جانبي سرلیکونه پر تخته لیکي ، بیا دلوست عبارت په څو تنو زده‌کوونکو لولي او هغوی ته لانډې مطالب او مفاهیم په ساده او لنډو عباراتوسره داسې تشریح کوي چې د هرې سویې زده‌کوونکي ورڅخه ګټه واخلي.<br>۱. د تاریخ لغوي او اصطلاحي معنٰی .<br>۲. سیرت د تاریخي بهیر بنسټ دی.<br>۳. د سیرت او تاریخ د سند د روایت طریقې روښانه کول.<br>٤. د سیرت النبي د مصادرو بیانول .<br>۵. د سیرت علم کله رامنځته شو او مشهور کتابونه یې کوم دي؟<br>ښاغلی ښوونکی د لوست مفهوم زده‌کوونکو ته بیانوي.<br>ښاغلی ښوونکی زده‌کوونکو ته د خپلو رایو د ښکاره کولو جرأت او موقع ورکوي، د لوست په اړه پوښتنو ته یې غوږ ږدي او د مینې په فضا کې ورته سم ځواب ورکوي.<br>په لوست کې ورکړای شوی فعالیت په خپل ځای کې له زده‌کوونکو سره مطرح کوي.<br>په آخر کې د لوست خلاصه او لنډیز په مناسبو او لنډو عباراتو سره وړاندې کوي. | زده‌کوونکي دې د عبارت لوستلو پر مهال خپلو کتابونو ته ځیر شي او د تشریح پر مهال دې ښوونکي ته غوږ شي.<br>زده‌کوونکي دې د فعالیت په اجرا کې فعاله ونډه واخلي<br>زده‌کوونکي دې د لوست مهم ټکي ولیکي |
| ۵ دقیقې | **. د لوست لنډیز:**<br>د پیغمبر ﷺ سیرت د تاریخ اساس او بنسټ دی، مسلمانانو د سیرت لیکنه خپله دیني وجیبه ګڼله نو ځکه یې زیار ایسته چې له داسې لارو یې نقل کړي چې شک او شبه په کې نه وي، وروسته بیا لدې لارې څخه د تاریخ په لیکلو کې هم ګټه واخستل شوه، د نبوي سیرت مصادر له قرآن کریم، نبوي سنتو، | زده‌کوونکي دې غوږ شي او د خپل ښوونکي خبرې دې په غور سره واوري |

| | | |
|---|---|---|
| | د محمـدي صـفاتو لـه كتـابونو، د نبـوي دلايلـو لـه كتـابونو، د محمـدي خصائصـو لـه كتـابونو او د غزاگـانو لـه كتـابونو څخـه عبارت دي. د سيرت پـه بـاب ليكنـه د صـحابه وو، تـابعينو، تبع تابعينو په دورو كې پيل شـوه، او پـه وروسـتيو دورو كـې هـم د سيرت په باب ارزښناكې ليكنې وشوې. | |
| ۱۰ دقيقې | **ارزونه:**<br>۱. د نبوي سيرت تاثير د تاريخ په تدوين كې بيان كړئ!<br>۲- د سيرت النبي ﷺ تدوين په مستقله توگه څه وخت پيل شـو؟ او د دوو كتابونو نومونه واخلئ چې په مستقيمه توگه د نبوي سيرت پـه هكله تاليف شوي وي. | زده‌كوونكي دې ځواب وركړي |
| | **كورنۍ دنده:**<br>د لوست مهم مطالب په لنډ ډول په خپلـه ژبـه د يـوې مقـالې پـه بڼـه وليكئ. | ـ زده‌كوونكي دې كورنۍ دنده پـه كورونوكې ترسره كړي. |

**دریم لوست:**

**سرلیک:** **له اسلام څخه وړاندې د جزیرة العرب حالت (الف)**

**وخت:** **یو درسي ساعت**

**موخې: زده‌کوونکي باید:**

۱. دین په لغت او اصطلاح کې وپیژني.
۲. له اسلام څخه د مخه د عربي نړۍ له ادیانو څخه خبر شي.
۳. په عربي نړۍ کې د بُت پرستۍ د پیلیدلو په اړه معلومات ترلاسه کړي.
٤. بت پرستي وپیژني او ورڅخه ځان وژغوري.

**ښوونکي ته اضافي معلومات:**

**د ځینو پیغمبرانو په اړه لنډ معلومات:**

**ابراهیم علیه السلام:** د پلار نوم یې آزر ؤ د یوې ښځې نوم یې ساره او د بلې ښځې نوم یې چې د اسماعیل علیه السلام مور وه، هاجره دی.

د ابن کثیر په تفسیر کې لیکل شوي دي چې د ابراهیم علیه السلام د پلار نوم تارح و او آزر د هغه بت نوم دی چې دی یې خادم و، د ډیرزیات ریښتیني خدمت له وجهې په خپله ده ته آزر ویل شوي دي.

**نوح علیه السلام:** د پلار نوم یې لمک و، ۹۵۰ کاله یې خپل قوم ته تبلیغ وکړ او له ابراهیم علیه السلام څخه ډېر پخوا تیر شوي دی.

**د تدریس طریقې:**

توضیحي، مباحثوي او د سوال او ځواب په توګه.

**د لوست مرستندویه توکي:** درسي کتاب، د سیرت او تاریخ کتابونه، تخته او تباشیر.

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده‌کوونکو فعالیت |
|---|---|---|
| ٥ دقیقې | **سریزه:** ښاغلی ښوونکی د لوست په اړه د ضروري معلوماتو د لاسته راوړلو څخه وروسته ټولګي ته ځي سلام اچوي د زده‌کوونکو د حال احوال پوښتنه کوي، دټولګي نظم جوړوي او حاضري اخلي. د یوې پوښتنې په مطرح کولو لګه: بشریت ولې دین ته اړتیا لري؟ زده‌کوونکي د نوي لوست لپاره چمتو کوي. له مخکینې لوست سره د نوي لوست تړاو په ډاګه کوي او په اړه یې زده‌کوونکو ته لازم معلومات ورکوي. | زده‌کوونکي دې په ډیر درنښت د خپل ښوونکي سلام ته ځواب ورکړي، د خپل نوم په اوریدلو دې د حاضرۍ ځواب ورکړي، د ټولګي په تنظیم کې دې له ښوونکي سره پوره مرسته وکړي |

| | | |
|---|---|---|
| ۲۵ دقيقې | **د لوست وړاندې کول:**<br>ښاغلی ښوونکی له زده‌کوونکوڅخه غواړي چې د لوست متن په ورو ولولي او پخپله د لوست جانبي سرليکونه پر تخته ليکي ، بيا دلوست عبارت په څو تنو زده‌کوونکو لولي او هغوی ته لاندې مطالب او مفاهيم په ساده او لنډو عباراتوسره داسې تشريح کوي چې د هرې سويې زده‌کوونکي ورڅخه ګټه واخلي.<br>۱- د دين لغوي او اصطلاحي معنا پيژندل.<br>۲- په عربي نړۍ کې د هماغه وخت د موجودو اديانو او په ځانګړي ډول د بت پرستۍ د پيل په اړه معلومات .<br>۳- په عربي نړۍ کې د بت پرستۍ پيل.<br>٤- له بتانو سره د عربو تعامل.<br>ښاغلی ښوونکی وروسته له دې چې لوست پر زده‌کوونکو لولي او تيروتنې يې اصلاح کوي پورتني مطالب په خپله تشريح کوي.<br>زده‌کوونکوته د لوست د موضوع په اړوند د پوښتنو کولو جرأت ورکوي اوپوښتنو ته يې مناسب ځوابونه وايي.<br>په لوست کې ورکړل شوی فعاليت په خپل ځای کې له زده‌کوونکو سره مطرح کوي. د ضرورت په وخت کې زده‌کوونکوته وخت ورکوي چې په اړه يې په خپلو کې بحث وکړي.<br>ښوونکی په ټولګي کې غوره او معقول حرکات ترسره کوي.<br>او په پای کې دلوست لنډيززده‌کوونکو ته په لنډو او ساده الفاظو وړاندې کوي. | زده‌کوونکي دې خپلو کتابونو ته ځير شي او خپلې پوښتنې دې مطرح کړي<br><br>زده‌کوونکي دې د فعاليت په اجرا کې فعاله ونډه واخلي<br><br>زده‌کوونکي دې د لوست مهم ټکي په کتابچو کې وليکي |
| ۵ دقيقې | **د لوست لنډيز:**<br>عربان په لومړي سر کې د ابراهيمي دين پيروان وو. خو د اوږدې مودې له تيريدو وروسته په هغوی کې له ځينو ديني شعائرو پرته نور هيڅ شی هم پاتې نه و. په عربي جزيره کې لومړی عمرو بن لحی چې د بني خزاعه د قبيلې مشر و، له شام څخه يې يو بوت چې (هبل) نوميده راوړ او خلک يې د هغه عبادت ته را وبلل. د مکې خلکو دده بلنه ومنله او د بتانو عبادت يې پيل کړ، عربو د دې عبادت لپاره ځانګړي مراسم درلودل. | زده‌کوونکي په ډېر غور سره ښوونکي ته غوږ ږدي. |
| ۱۰دقيقې | **ارزونه:**<br>۱. دين په لغت او اصطلاح کې څه ته وايي؟ تعريف يې کړئ.<br>۲. د کعبې شريفې په چاپيريال کې خلکو څه وخت د بتانو عبادت پيل کړ؟<br>۳- مشرکان په بت پرستۍ کې د يو شمير مراسمو پابند وو ځينې له هغو څخه وليکئ. | زده‌کوونکي دې د ښوونکي پوښتنو ته ځوابونه ووايي. |
| | **کورنی دنده:**<br>د لوست مطالب په مختصر ډول د يوې مقالې په ترڅ کې په خپله ژبه وليکئ. | ــ زده‌کوونکي دې کورنۍ دنده په کورونو کې ترسره کړي. |

## څلورم لوست:

سرلیک: له اسلام څخه د مخه د عربو حالت ( ب )

وخت: یو درسي ساعت (٤٥ دقیقي)

موخې: زده‌کوونکي باید:

١- د عربو له دیني، ټولنیزې، سیاسي او اقتصادي وضعې څخه خبر شي.

٢- د عربو له مخکیني حالت څخه پند واخلي او له هغو کړنو څخه چې دوی تر سره کولې ځانونه وساتي.

**ښوونکي ته اضافي معلومات:**

**اشهرالحرم:** حرامې میاشتې څلور دي: رجب، ذوالقعدة، ذوالحجة او محرم. دغه حرامې میاشتې به کله ناکله عربو د خپلو ګټو لپاره په نورو میاشتو باندې هم بدلولې.

په عربي نړۍ کې په ابراهیمي دین بر سیره چې په شرك او بت پرستۍ بدل شوی وو نور ادیان لکه: یهودیت، نصرانیت، مجوسیت او صبائیت هم موجود وو.

**یهودیت:** د موسی علیه السلام دین و چې په وروستیو کې تحریف شو.

**نصرانیت:** د عیسی علیه السلام دین و چې دا هم وروسته تحریف شو.

**مجوسیت:** چې د اکبر اوعظیم ملت په دین نومول کیده. دوی دوه شیان اصل ګڼل: یو نور (رڼا) وه چې دا اصل یې ازلي بللو او بل ظلمة (تیاره) وه چې دا اصل به یې حادث بللو. دوی د اور عبادت کاوه.

**صبائیت:** دا داسې دین و چې د ستورو عبادت پکې کیده او په هر څه کې به یې ستورې مؤثر بلل.

**د تدریس طریقې:** تشریحي، مباحثوي ، پوښتنه او ځواب .

**د لوست مرستندویه توکي:** درسي کتاب، د سیرت او تاریخ کتابونه، تخته، تباشیر.

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده‌کوونکو فعالیت |
|---|---|---|
| ٥ دقیقې | **سریزه:** ښاغلی ښوونکی ټولګي ته له ننوتلو سره سم سلام اچوي د زده‌کوونکو د حال او احوال پوښتنه کوي، ټولګی تنظیموي، حاضري اخلي. له زده‌کوونکو څخه د تېر لوست په اړه پوښتنې کوي لکه: عرب له اسلام څخه وړاندې د کوم دین پیروان وو؟ په عربو کې لومړی ځل د بت عبادت چا رواج کړ؟ د صحیح ځواب په اورېدلو سره د نن ورځې د لوست سرلیك پر تخته لیکي او په لوست پیل کوي . | زده‌کوونکي دې په ډېر درنښت د خپل ښوونکي سلام ته ځواب ورکړي، د خپل نوم په اوریدلو دې د حاضرۍ ځواب ورکړي، د ټولګي په تنظیم کې دې له ښوونکي سره پوره مرسته وکړي. زده‌کوونکي دې ځواب ورکړي. |

| | | |
|---|---|---|
| ۲۵ دقیقې | **د لوست وړاندې کول:**<br>ښاغلی ښوونکی له زده‌کوونکوڅخه غواړي چې د لوست متن په ورو ولولي او پخپله د لوست جانبي سرليکونه پر تخته ليکي ، بيا دلوست عبارت په څو تنو زده‌کوونکو لولي او هغوی ته لاندې مطالب او مفاهيم په ساده او لنډو عباراتوسره داسې تشريح کوي چې د هرې سويې زده‌کوونکي ورڅخه ګټه واخلي.<br>۱- د عربو له ديني وضعې څخه خبرتيا .<br>۲- د عربو د ټولنيز حالت په اړه معلومات.<br>۳- له سياسي وضعې څخه يې د زده‌کوونکو خبرول .<br>٤- د عربو د اقتصادي حالت په اړه خرګندونې .<br>ښاغلی ښوونکی د زده‌کوونکو څارنه کوي چې هغوی له ده سره په درس کې شريک وي او په نورو کړنو بوخت نه شي.<br>ښاغلی ښوونکی د لوست په اړه د معلوماتو د لازياتوالي په خاطر د ځينو مطالبو په اړوند له زده‌کوونکو سره بحث او مباحثه کوي اوپرته له دې چې درس اخلا ل شي د هر زده‌کوونکي نظريات په غور سره اوري، هغه زده‌کوونکي چې معلومات يې نسبت نورو ته په زړه پورې او معقول وي ستايي.<br>په لوست کې ورکړل شوی فعاليت په خپل ځای کې له زده کونکو سره مطرح کوي.<br>په پای کې زده‌کوونکو ته د درس لنډيز وړاندې کوي. | زده‌کوونکي دې خپلو کتابونو ته ځير شي او د ښونکي معلومات دې په غور سره واوري.<br><br>زده‌کوونکي دې خپل معلومات وړاندې کړي<br><br>زده‌کوونکي دې د فعاليت په اجرا کې فعاله ونډه واخلي<br><br>زده‌کوونکي دې د لوست مهم ټکي په کتابچو کې وليکي |
| ۵ دقیقې | **د لوست لنډيز:**<br>په عربي جزيره کې د اسلام دين په داسې حالت کې ظاهر شو چې په دوی کې ناوړو تقليدونو او د بتانو عبادت وده کړې وه، عربي ټولنه په بېلابېلو طبقو وېشل شوې وه، خرافات د دوی ترمنځ دومره اوج ته رسيدلي وو، چې کله نا کله به يې خپل مقصد ته د رسيدو په موخه زامن نذر او قرباني کول، د عربي جزيرې حاکمان يو تاجداره پاچاهان او بل د قبايلو او پرګنو مشران وو. د حجاز حکومت د ټولو عربانو لپاره د احترام وړ و. د جګړې پر وخت هېڅا د حق پلوي نه کوله بلکې يوازې د خپلې قبيلې پلوي يې کوله، د ځارويو ساتنې په جزيرة العرب کې رواج درلود، د عربو ډيرو ښځو به وږې وريشلې، بې وزلې، لوږه او بربنډتوب د ټولنې په ټولو برخو کې څرګند و. | زده‌کوونکي دې د ښوونکي خبرو ته ښه غوږ شي. |
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>۱. د جاهليت په زمانه کې دعربو ديني او اخلاقي حالت بيان کړئ.<br>د جاهليت په زمانه کې د عربوسياسي او اقتصادي حالت بيان کړئ. | زده‌کوونکي دې د ښوونکي پوښتنو ته ځوابونه ووايي |
| | **کورنۍ دنده:**<br>د لوست مهم مطالب په مختصر ډول په خپله ژبه د يوې مقالې په بڼه وليکئ. | ــ زده‌کوونکي دې کورنۍ دنده په کورونوکې ترسره کړي. |

## پنځم لوست:

**سرليک:** **د پيغمبر اکرم ﷺ نسب**

**وخت:** **يو درسي ساعت**

**موخې: زده‌کوونکي بايد:**

۱- بني هاشم وپيژني، چې پيغمبر (ﷺ) ورته منسوب دی.

۲- عبدالمطلب وپيژني، چې د پيغمبر (ﷺ) نيکه دی.

۳- د زمزم اوبو د څاه د کيندلو پر کېسې پوه شي.

٤- د فيل له پېښې خبر شي او له ابرهه سره د عبدالمطلب په خبرو پوه شي.

٥- د پيغمبر ﷺ د پلار او مور په هکله معلومات تر لاسه کړي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

**د نبي کريم ﷺ د نسب لړی:**

**د پيغمبر ﷺ پوره نسب:** محمد، بن عبدالله، بن عبدالمطلب، بن هاشم، بن عبدمناف، بن قصي، بن کلاب، بن مرة، بن کعب، بن لؤی، بن غالب، بن فهر، بن مالک، بن النضر، بن کنانه، بن خزيمة، بن مدرکة، بن الياس، بن مضر، بن نزار، بن معد، بن عدنان تر دې ځايه هيڅ اختلاف نشته. خو له دې ځخه وړاندې تر اسماعيل عليه السلام پورې يې د نيکونو په نومونو او شميره کې اختلاف دی.

- د ابرهه په هکله چې الله تعالی کوم سورت نازل کړی دی هغه د فيل سورت دی (**أَلَمْ تَرَ كَيْفَ فَعَلَ رَبُّكَ بِأَصْحَابِ الْفِيلِ**) [الفيل : ۱].

**د تدريس طريقې:** توضيحي، مباحثوي، ګروپي کار، پوښتنې او ځوابونه.

**د لوست مرستندويه توکي:** درسي کتاب ، د سيرت او تاريخ کتابونه، تخته او تباشير.

**د لوست بهير:**

| وخت | د ښوونکي فعاليت | د زده‌کوونکو فعاليت |
|---|---|---|
| ۵ دقيقې | **سريزه:** ښاغلی ښوونکی ټولګي ته له ننوتلو سره سم سلام اچوي. وروسته د زده‌کوونکو په حال ځان خبروي، ټولګی منظموي، حاضري اخلي، د مخکېني لوست په اړه له زده‌کوونکو څخه پوښتنه کوي لکه: د حجاز د حکومت مشرتوب د کومې کورنۍ سره ؤ؟ د هغې کورنۍ د مشر نوم څه و؟ لدې څخه وروسته په زده‌کوونکي کې د نوي لوست په اړه د انګيزې د پيدا کولو په خاطر له دوی څخه د نوي لوست په اړه پوښتنه کوي، لکه: څوک د پيغمبرﷺ نسب بيانولای شي؟ لدې څخه وروسته د نوی لوست عنوان پر تخته ليکي اودرس پيل کوي. | زده‌کوونکي دې په ډير درنښت د خپل ښوونکي سلام ته ځواب ووايي، د ټولګي په تنظيم کې دې له ښوونکي سره پوره مرسته وکړي<br><br>زده‌کوونکي دې ځواب ووايي |

| وخت | فعالیتونه | یادښت |
|---|---|---|
| ۲۵ دقیقې | **د لوست وړاندې کول:**<br>ښاغلی ښوونکی له زده‌کوونکوڅخه غواړي چې د لوست متن په ورو ولولي او پخپله د لوست جانبي سرلیکونه پر تخته لیکي ، بیا دلوست عبارت په څو تنو زده‌کوونکو لولي او هغوی ته لاندې مطالب او مفاهیم په ساده او لنډو عباراتوسره داسې تشریح کوي چې د هرې سویې زده‌کوونکي ورڅخه ګټه واخلي.<br>۱- د پیغمبر ﷺ د کورنۍ بني هاشمو پېژندنه.<br>۲- د عبدالمطلب پېژندنه چې د پیغمبر ﷺ نیکه و.<br>۳- د زمزم د څاه د کیندلو کیسه.<br>٤- د فیل د پېښې بیان.<br>۵- له ابرهه سره د عبدالمطلب خبرې.<br>٦- د پیغمبر ﷺ د پلار او مور پېژندنه.<br>ښاغلی ښوونکی د لوست مفهوم زده‌کوونکو ته بیانوي.<br>ښاغلی ښوونکی زده‌کوونکو ته د خپلو رایو د ښکاره کولو جرأت او موقع ورکوي، د لوست په اړه پوښتنو ته یې غوږ ږدي او د مینې په فضا کې ورته سم ځواب ورکوي.<br>په لوست کې ورکړی شوی فعالیت په خپل ځای کې له زده‌کوونکو سره مطرح کوي.<br>په آخر کې د لوست خلاصه او لنډیز په مناسبو او لنډو عباراتو سره وړاندې کوي. | زده‌کوونکي دې د لوست د مطالبو تشریح ته تیاری وښیي.<br><br>زده‌کوونکي دې د فعالیت په اجرا کې فعاله ونډه واخلي |
| ۵ دقیقې | **د لوست لنډیز:**<br>د نبي کریم (ص) نوم محمد د پلار نوم یې عبدالله د نیکه نوم یې عبدالمطلب د قریشو د بني هاشم له قبیلې څخه دی. د نسب سلسله یې عدنان او له هغه څخه پورته اسماعیل بن ابراهیم علیهما السلام ته رسیږي. د نبي کریم (ص) پلار عبد الله د ده له زیږېدنې څخه مخکې د ۲۵ کلنۍ په عمر په مدینه منوره کې وفات او هلته خاورو ته وسپارل شو. مور یې بي بي آمنه د وهب چې د بني زهره د قبیلې مشر ؤ، لور وه، هاشم چې نوم یې عمرو و، د بیت الله زایرینو ته یې اوبه ورکولې هغه بډای شخص و او د خلکو په منځ کې د زیات شرافت او عزت څخه برخمن و. عبد المطلب به د هاشم په څیر د بیت الله میلمنو ته اوبه ورکولې، او د هغوی خدمت به یې کاوه، د عبدالمطلب په زمانه کې د کعبې شریفې په هکله دوه مهمې پېښې واقع شوې: یوه د زمزم د څاه کیندل او بل د فیل واقعه وه. عبدالمطلب ته په خوب کې د زمزم د څاه ځای ور په ګوته شو، بیا یې د څاه په کیندلو پیل وکړ، د فیل واقعه د نبي کریم (ص)د زیږیدنې څخه پنځه پنځوس | زده‌کوونکي دې د لوست مهم ټکي په کتابچو کې ولیکي |

| | | |
|---|---|---|
| | ورځې مخکې د محرم په میاشت کې پیښه شوه. | |
| | **ارزونه:**<br>۱. نبوي کورنۍ په هاشمي کورنۍ مشهوره ده ، هاشم څوک دی؟<br>۲. د الله د کور په هکله عبدالمطلب ته دوه مهمې واقعې پیښې شوې هغه څه وې؟ څرګندې یې کړئ.<br>۳. د نبي کریم (ص)پلار څه وخت وفات شو؟ | زده‌کوونکي دې د ښوونکي پوښتنو ته ځوابونه ووایي |
| | **کورنۍ دنده:**<br>د لوست مهم مطالب په مختصر ډول په خپله ژبه د یوې مقالې په شکل کې ولیکئ. | زده‌کوونکی دې کورنۍ دنده په کورونو کې ترسره کړي. |

**شپږم لوست:**

**سرليک:** **د نبي کريم ﷺ ميلاد**

**وخت:** **يو درسي ساعت (٤٥دقيقې)**

**موخې: زده‌کوونکي بايد:**

١- د نبي کريم ﷺ د مبارک ميلاد نيټه په دقيقه توګه وپيژني.

٢- د اسلام د ستر پيغمبر ﷺ له کورنۍ سره آشنا شي.

٣- په بني سعد قبيله کې د نبي کريم ﷺ د ژوند په اړه معلومات تر لاسه کړي.

٤- د رسول اکرم ﷺ د روزنې په هکله د ده د تره او نيکه په شفقت او مهرباني باندې خبر شي.

**ښوونکي ته اضافي معلومات:**

**بني سعد:** د عربو يوه قبيله وه طايف ته نږدې چې د اقليم او موسم له پلوه د ماشومانو د ودې لپاره مناسب ځای و . د همدې قبيلې ښځه د حليمې سعديې په نامه يوه بختوره ښځه حضرت محمد ﷺ ته د شيدو ورکولو په وياړ وياړمنه شوه.

**د پيغمبر ﷺ رضاعي ميندی:**

**١- ثويبه** د ابولهب وينځه.

له ثويبې څخه يې رضاعي خويندې او ورونه دا دي:

مسروح چې د ثويبې خپل زوی و، حضرت حمزه رضي الله عنه چې د پيغمبر ﷺ تره او له ده څخه دوه کاله مشر و او ابو سلمة بن عبد الاسد.

**٢- حليمه سعديه:** د ابو ذويب عبدالله بن حارث لور د هوازن له قبيلې څخه وه ، خاوند يې حارث بن عبد العزی نوميده ، له حليمې څخه د پيغمبر (صلى الله عليه و سلم) رضاعې خويندې او ورونه دا دي:

عبد الله، انيسه او شيما چې د بي بي حليمې خپل اولادونه وو.

همدا رنګه بل رضاعي ورور يې ابو سفيان بن الحرث بن عبد المطلب دی چې د رسول الله ﷺ د کاکا زوی هم دی.

**رضاع:** په لغت کې تي رودلو ته وايي.

په شرع کې د عمر په خاص وخت کې د ښځې تي رودلو ته رضاع وايي.

**حکم يې:** هغه څوک چې په نسب او مصاهرت سره حراميږي هغه په رضاع سره هم حراميږي.

**دليل يې:** (يَحْرُمُ مِنَ الرَّضَاعِ مَا يَحْرُمُ مِنَ النَّسَبِ)[٣].

**د تدريس طريقې:** توضيحي ، مباحثوي، پوښتنې او ځوابونه .

**د لوست مرستندويه توکي:** درسي کتاب، د سيرت او تاريخ کتابونه، نقشه، تخته او تباشير.

٣ – السنن الکبرى للبيهقي. ط المعارف بالهند – (٧ / ١٥٨)

د لوست بهیر:

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده‌کوونکو فعالیت |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | **سریزه:**<br>ښاغلی ښوونکی ټولګی ته ننوتلو سره سم سلام اچوي او د زده‌کوونکو له احوال پوښتلو څخه وروسته د تدریس د فضا د رامنځته کولو په غرض د تیر لوست په اړوند له زده‌کوونکو څخه پوښتنې کوي. مثلاً: د نبي اکرم ﷺ د نسب لړۍ چاته رسیږي؟<br>د فیل واقعه د نبي کریم (ص) له زیږیدنې څخه څو ورځې مخکې پیښه شوه؟ ښوونکی د سم ځواب د ترلاسه کولو وروسته زده‌کوونکي لازیات تشویقوي او د نوي لوست په اړه په دوی کې انګیزه پیدا کوي او وروسته په لوست پیل کوي. | په ډیر درنښت دې د خپل ښوونکي سلام ته ځواب ووایي، د خپل نوم په اوریدلو دې د حاضرۍ ځواب ورکړي، د ټولګي په تنظیم کې دې له ښوونکي سره پوره مرسته وکړي<br>زده‌کوونکي دې ځواب ووایي |
| ۲۵ دقیقې | **د لوست وړاندې کول:**<br>ښاغلی ښوونکی کوښښ کوي چې زده‌کوونکي د لوست په موخو پوه کړي.<br>ښاغلی ښوونکی د زده‌کوونکو د ښه پوهولو لپاره د نبي کریم (ص) د میلاد په اړه پوره معلومات وړاندې کوي، او د دوی د هڅونې لپاره پدې اړه له دوی څخه پوښتنې کوي.<br>ښاغلی ښوونکی د لوست متن په وار وار او برخه، برخه پر زده‌کوونکو لولي او د هغوی تیروتنې په خورا مهربانۍ او شفقت اصلاح کوي.<br>ښاغلی ښوونکی د لوست په اړه د زده‌کوونکو پوښتنې په مهربانۍ سره ځوابوي او هغوی هڅوي چې په لوست کې اغیزمنه ونډه واخلي چې کم ذهنه زده‌کوونکو ته جرأت او روحیه ورکړل شي.<br>ښاغلی ښوونکی د درسي کتاب فعالیت په ځانګړې ډول او یا ډله ییز ډول پر زده‌کوونکو حلوي او په پای کې د لوست لنډیز وایي. | زده‌کوونکي دې خپلو کتابونو ته ځیر شي<br>زده‌کوونکي دې د ښوونکي د غوښتنې مطابق فعالیت حل کړي<br>زده‌کوونکي دې د لوست مهم ټکي په کتابچو کې ولیکي |
| ۵ دقیقې | **د لوست لنډیز:**<br>پیغمبراکرم(ص) د ربیع الاول په دولسمه نیټه د دوشنبې په سهار چې د (۵۷۱) میلادي کال د اپریل له شلمې یا دوه ویشتمې نیټې سره برابره ده دنیا ته تشریف راوړ، له تولد څخه وروسته عبدالمطلب هغه (ص) کعبې شریفې ته یوړ او نوم یې محمد وربانـدې کیښود. لـدې څخه وروسته د عربو له عادت سره سم یې هغه د بني سعد بن بکر د قبیلې یوې ښځې ته چې حلیمه سعدیه نومېده د شیدو ورکولو لپاره ورکړ.<br>۱. حلیمې سعدیې د شیدو د مودې د پوره کیدو څخه وروسته محمد (ص)خپلې مور ته وسپاره، کله چې شپږ کلن شو مور یې وفات شوه، کله چې آته کلن شو نیکه یې هم وفات شو. او د ده پالنه | زده‌کوونکي دې د ښوونکي خبرو ته ښه غوږ شي. |

| | | |
|---|---|---|
| | ابوطالب چې دده کاکا کیده په غاړه واخیسته، ابو طالب د خپل وراره محمد (ص) په ښه شان روزنه او پالنه وکړه. | |
| ۱۰ **دقیقې** | **ارزونه:**<br>۲. پیغمبر (ص)څه وخت پیدا شو؟<br>۳. د محمد (ص)د مور د وفات پیښه شرحه کړئ.<br>د رسول الله (ص)د مور له مړینې وروسته د هغه نیکه د رسول الله (ص)سره څرنگه کړنه کوله؟ | زده‌کوونکي دې ځواب ورکړي |
| | **کورنی دنده:**<br>د لوست مهم مطالب په مختصرډول په خپله ژبه د یوې مقالې په شکل ولیکئ. | زده‌کوونکي دې کورنی دنده په کورونوکې ترسره کړي. |

**اووم لوست**:

**سرليک:محمدﷺ د ځوانی په درشل کې.**

**وخت: يو درسي ساعت (٤٥ددقيقې)**

**موخې: زده‌کوونکي بايد:**

١. د حضرت محمد ﷺ د ځوانی د مهمو پيښو سره آشنا شي.
٢. د رسول اکرمﷺ د ځوانی په دوره کې د هغه له اخلاقو څخه خبر شي.
٣. د حضرت محمد ﷺ په هکله د بحيرا راهب په څرګندونو وپوهيږي.
٤. د فجار په جګړې او د حلف الفضول په تړون کې د پيغمبر عليه السلام له ګډون څخه خبر شي.
٥. له خديجې (رضی الله عنها) سره د حضرت محمد ﷺ د واده لاملونه وپېژني.

**ښوونکي ته اضافي معلومات:**

**عکاظ:** عکاظ د نخلې او طايف تر منځ د يو ځای نوم دی.

**حرب الفجار:** د دې جنګ سبب دا و چې د براض په نامه يو سړی چې له بني کنانه و څخه و د قيس عيلان دری سړي ووژل، څلور ورځې يې دوام وکړ او بيا د عتبه بن ربيعه په منځګړيتوب پای ته ورسېد او د جګړې د دواړو خواوو ترمنځ سوله وشوه.

**د حلف الفضول لامل:** يو سړی چې د زبيدې له قبيلې څخه و، خپل سامان يې د خرڅلاو لپاره بازار ته راوړ. هغه عاص بن وائل ور څخه واخيست، خو پيسې يې نه ورکولې. هغه سړی د قريشو مشرانو ته ورغی او خپل عرض يې ورته وکړ، خو هېچا هم عاص بن وائل ته د ويلو جرأت ونه کړ، هماغه و چې هغه سړی د کعبې په څنګ کې ودرېد او په لوړ آواز يې خپل مظلوميت اعلان کړ. په دې وخت کې زبير بن عبدالمطلب ورغی د هغه له مظلوميت څخه په خبرېدلو يې بني هاشم، بني زهره او بنو تيم بن مرة راټول کړل او قسم يې ياد کړ چې له دې وروسته به موږ د مظلوم سره لاس يو کوو او له ظالم څخه به ورته حق اخلو ، هماغه و چې له عاص بن وائل څخه يې د هغه سړي حق واخيست او ور يې کړ.

**د تدريس طريقې:** توضيحي، مباحثوي ، د سوال او ځواب په توګه.

**د لوست مرستندويه توکي:** درسي کتاب، تخته، تباشير او د سيرت کتابونه.

**د لوست بهير:**

| وخت | د ښوونکي فعاليت | د زده‌کوونکو فعاليت |
|---|---|---|
| ٥ دقيقې | **سريزه:**<br>ښاغلی ښوونکی ټولګي ته په ورتللو سره سم سلام اچوي. وروسته د زده‌کوونکو د احوال پوښتنه کوي، حاضري اخلي او د مخکيني لوست په اړوند پوښتنې مطرحوي . مثلاً:<br>څوک ويلای شي چې د نبي کريم ﷺ د نيکه او تره نومونه څه وو؟<br>نبي کريم (ص) په کومه نېټه تولد شو؟ لدې څخه وروسته په زده‌کوونکو کې د انګيزې د راپيدا کولو په غرض د نوي لوست په اړه پوښتنې کوي، او په نوي لوست پيل کوي. | زده‌کوونکي دې په ډېر درنښت د ښوونکي د سلام ځواب ووايي، د ټولګي په تنظيم کې دې له ښوونکي سره پوره مرسته وکړي.<br><br>زده‌کوونکي دې ځواب ووايي. |

| وخت | د تدریس فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۲۵ دقیقې | **د لوست وړاند کول:**<br>ښاغلی ښوونکی د لوست سرلیک پر تخته لیکي او د لوست د موضوعاتو په اړه زده‌کوونکو ته پوره معلومات ورکوي. لدې څخه وروسته زده‌کوونکي په څو مناسبو ډلو ویشي او هغوی ته دنده ورکوي چې د هرې ډلې نماینده دې لوست په خپل وار سره ولولي او نور دې غوږ ونیسي.<br>ښاغلی ښوونکی د ډلو نظارت کوي او په پای کې له هر ګروپ څخه یو تن د لوست لنډ مطلب ټولګیوالو ته بیانوي.<br>ښاغلی ښوونکی د مطالبو د لاروښانه کولو لپاره د هر زده‌کوونکي په تشریحاتو لنډه تبصره کوي.<br>ښاغلی ښوونکی د لوست د پندونو او عبرتونو په باره کې له زده‌کوونکو سره مباحثه کوي او په لوست کې ورکړل شوی فعالیت په خپل ځای کې له زده‌کوونکو سره په ګروپي ډول مطرح کوي. په پای کې لوست په څو ټکو کې خلاصه کوي. | زده‌کوونکي دې په خورا غور سره غوږ ونیسي<br><br>زده‌کوونکي دې د فعالیت په اجرا کې فعاله ونډه واخلي<br>زده‌کوونکي دې د لوست مهم ټکي په کتابچو کې ولیکي |
| ۵ دقیقې | **د لوست لنډیز:**<br>نبي کریم (ص) په مېړانه، صبر، امانت دارۍ او داسې نورو غوره صفتونو کې ساری نه درلود، د عمر په دولس کلنۍ کې د خپل کاکا ابو طالب سره د شام په سفر روان شو، کله چې بصرې ته ورسېدل یو یهودي عالم چې بحیرا نومېده دوی ته میلمستیا وکړه او د هغه له مشورې وروسته ابوطالب محمد (ص) بیرته مکې ته راواستاوه، کله چې شل کلن شو د فجار مشهوره جګړه پېښه شوه چې د هغې په پای ته رسولو کې یې ارزښتناک رول ولوباوه، همدارنګه د حلف الفضول په تړون کې یې برخه واخیسته، نبي کریم (ص) شپني اوسوداګري هم کړې ده او په پنځه ویشت کلنۍ کې یې له بي بي خدیجې رضي الله عنها سره واده وشو. | زده‌کوونکي دې په ډېر غور سره غوږ شي. |
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>۱- د پیغمبر ﷺ اخلاق د ځوانۍ پر مها ل او له پیغمبرۍ څخه د مخه څرنګه وو؟<br>۲- ایا نبي کریم ﷺ د ځوانۍ پرمها ل کوم ټاکلی کسب او کار درلود؟ څرګند یې کړئ.<br>۳- د حلف الفضول څخه څه پندونه او نصیحتونه اخیستلای شو؟ څرګند یې کړئ.<br>۴- بحیرا راهب پیغمبر (ص)څرنګه وپیژنده؟ | زده‌کوونکي ځواب وایي |
| | **کورنۍ دنده:**<br>د لوست مهم مطالب په مختصرډول په خپله ژبه د یوې مقالې په بڼه ولیکئ. | زده‌کوونکي دې کورنۍ دنده په کورونوکې ترسره کړي. |

**اتم لوست:**

**سرلیک: د کعبې شریفې جوړول**

**وخت: یو درسي ساعت (٤٥ددقیقې)**

**موخې: زده‌کوونکي باید:**

١- د کعبې شریفې د جوړولو په تاریخ پوهیږي.

٢- د حجر اسود د ایښودونکي په اړه د قریشو له فیصلې خبر شي.

٣- د بعثت څخه وړاندې د رسول اللهﷺ د اخلاقو او اوصافو په اړه معلومات حاصل کړي.

٤- په مختلفو وختونو کې د کعبې شریفې د جوړولو په هکله معلومات تر لاسه کړي.

**ښوونکي ته اضافي معلومات:**

**معمار:** د رومي معمار نوم( باقوم) و.

**ولید بن مغیره:** د پیغمبرﷺ او حضرت عباس رضی الله عنه باجه او د حضرت **ام المؤمنین اُم سلمة** رضي الله عنها تره او د سیف الله (حضرت خالد) رضي الله عنه پلار و او بیا د یو غشي له امله چې د پښې رګ یې ورته پرې کړ د پیغمبر ﷺ په دښمنۍ کې مړ شو.

**د تدریس طریقې:**توضیحي، مباحثوي، د سوال او ځواب په توګه.

**د لوست مرستندویه توکي:** درسي کتاب، د سیرت کتابونه، د کعبې شریفې پخوانۍ او اوسنۍ نقشه.

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده‌کوونکو فعالیت |
|---|---|---|
| ٥ دقیقې | **سریزه:** ښاغلی ښوونکی د لوست د موضوع په اړوند د اړینو معلوماتو په تر لاسه کولو ټولګي ته داخلیږي. تر ټولو د مخه زده‌کوونکو ته سلام اچوي، د هغوی د حال احوال پوښتنه کوي، د خپل ټولګي په تنظیمولو کې هڅه کوي او حاضري اخلي. ښاغلی ښوونکی وروسته له دې چې د کعبې شریفې پخوانۍ او اوسنۍ نقشه د ټولګي پر دېوال ځړوي د یوې مقدمې په وړاندې کولو سره مخکیني لوست ته د اوسني لوست سره تړاو ورکوي او په نوي لوست پیل کوي. | زده‌کوونکي دې په ډېر درنښت د خپل ښوونکي سلام ته ځواب ووایي، د خپل نوم په اوریدلو دې د حاضرۍ ځواب ورکړي، د ټولګي په تنظیم کې دې له ښوونکي سره پوره مرسته وکړي |

| | | |
|---|---|---|
| ۲۵ دقيقې | **د لوست وړاند کول:**<br>ښاغلی ښوونکی له زده‌کوونکوڅخه غواړي چې د لوست متن په ورو ولولي او پخپله د لوست جانبي سرليکونه پر تخته ليکي ، بيا دلوست عبارت په څو تنو زده‌کوونکو لولي او هغوی ته لاندې مطالب او مفاهيم په ساده او لنډو عباراتوسره داسې تشريح کوي چې د هرې سوېې زده‌کوونکي ورڅخه ګټه واخلي.<br>۱. د کعبې شريفې د جوړولو په اړه زده‌کوونکو ته بشپړ معلومات.<br>۲. د حجر الاسود د ايښودلو په واقعه کې د نبي کريم ﷺ د حکميت په اړه معلومات.<br>۳. د رسول ﷺ د صفاتو او اخلاقو په هکله زده‌کوونکو ته معلومات.<br>٤. د ادم عليه السلام څخه تر اوسه پورې د کعبې شريفې د څو ځلې جوړولو کيسه بيانول.<br>ښاغلی ښوونکی د پورتني هر مطلب په اړه مباحثه کوي.<br>ښاغلی ښوونکی د زده‌کوونکو حرکتونو ته متوجه وي د نا مناسب حرکت په ليدلو نوموړي زده‌کوونکي ته توصيه کوي.<br>ښاغلی ښوونکی زده‌کوونکو ته د لوست په اړوند د پوښتنو کولو وخت ورکوي او هره پوښتنه يې ځوابوي، که چېرې د کومې پوښتنې په ځواب کې متيقن نه وي، بله ورځ هغه ته سم ځواب ورکوي. په لوست کې ورکړل شوی فعاليت له زده‌کوونکو سره په خپل ځای کې مطرحوي په پای کې د درس لنډيز بيانوي. | زده‌کوونکي عبارت لولي او خپلو کتابونو ته ګوري.<br>زده‌کوونکي پوښتنې کوي.<br>زده‌کوونکي دې د فعاليت په اجرا کې فعاله ونډه واخلي.<br>زده‌کوونکي دې د لوست مهم ټکي په کتابچو کې وليکي |
| ۵ دقيقې | **د لوست لنډيز:**<br>رسول الله ﷺ پنځه ديرش کلن و چې د سيلاب له امله د کعبې شريفې ودانۍ چې يواځې ديوالونه وو سخته زيانمنه شوه او قريش دې ته اړ شول چې له سره يې ورغوي، کله چې د حجر اسود ايښودلو وخت راغی قريش يې په ايښودلو باندې مخالف شول. نيږدې و چې دغه مخالفت په لوی ناورين او لويه جګړه بدل شي، خو د نبي کريم (ص) په حکيمانه تدبير او له حکمت څخه په ډکه فيصله دغه مخالفت پای ته ورسيد، او الله تعالی د حجر الاسود د ايښودلو وياړ پيغمبر (ص) ته ورپه برخه کړ، د کعبې شريفې د جوړښت په اړه که څه هم مختلف روايات وجود لري خو دا ثابته خبره ده چې حضرت ابراهيم او حضرت اسماعيل عليهما السلام د کعبې ديوالونه جګ کړي دي او بيا له هغې څخه وروسته څلور ځله له سره جوړه شوې او يو ځل يې اساسي ترميم شويدی. | زده‌کوونکي دې په ډېر غور سره غوږ شي. |

| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>۱- د هغې شخړې لامل چې د حجرالاسود دایښودلو پر مهال د قبایلو تر منځ پیښه شوه څه و؟<br>۲- د نبي کریم صلی الله علیه و سلم دتحکیم قضیه څنګه منځ ته راغله په لنډه توګه یې شرحه کړئ؟<br>۳- هغه نیک صفتونه چې د بعثت څخه وړاندې په نبي کریمﷺ کې وو ځینې له هغو څخه بیان کړئ.<br>٤- د بعثت څخه د مخه د پیغمبر (ص) غبرګون د بتانو په وړاندې څرنګه و؟ بیان یې کړئ. | زده کوونکي دې ځواب ورکړي. |
| --- | --- | --- |
| | **کورنۍ دنده:**<br>د لوست مطالب په خپل تعبیر سره ولیکئ اوهم ورته مناسب سرلیک غوره کړئ. | زده کوونکي دې کورنۍ دنده په کورونوکې ترسره کړي. |

**نهم لوست**:

سرلیک: د نبوت او رسالت په سیوري کې

وخت: یو درسي ساعت (٤٥دقیقې)

**موخې: زده کونکي باید:**

١. د حرا په غار کې د پیغمبرﷺ له عبادت او هغه ته د وحې له نازلیدلو څخه خبر شي.
٢. مکي دوره چې پټ، ښکاره او له مکې څخه بهر د دعوت خپرېدلو ته شامله ده وپېژني.
٣. په دې وپوهېږي چې تر ټولو لومړني کوم آیاتونه او په کوم ځای کې نازل شول.

**ښوونکي ته اضافي معلومات:**

**د حرا په غار کې د پیغمبرﷺ عبادت:** د حرا په غار کې د پیغمبرﷺ عبادت یوازې او یوازې د کائیناتو د خالق په باره کې فکر کول و، خو ځینې علما وایي: چې د ابراهیم علیه السلام د شریعت موافق یې عبادت کاوه .

د حرا غار د ثور له غار څخه کوچنی او مکې مکرمې ته نږدې واقع دی.

جبل نور د جاهلیت په زمانه کې د حرا د غره په نامه یادیده او په اسلام کې د جبل نور په نامه ونومول شو.

**د تدریس طریقې:**

تشریحي ، مباحثوي او یا هم د سوال او ځواب په توګه.

**د لوست مرستندویه توکي:** درسي کتاب، دسیرت کتابونه، نقشه، تخته او تباشیر.

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده‌کوونکو فعالیت |
|---|---|---|
| ٥ دقیقې | **سریزه:** ښاغلی ښوونکی ټولګي ته له ننوتلو سره سم سلام اچوي، د زده‌کوونکو د حا ل احوا ل پوښتنه کوي، د ټولګي نظم جوړوي او حاضري اخلي. ښاغلی ښوونکی دزده‌کوونکو د کورنۍ دندې له کتلو او اصلاح وروسته د تیر لوست په اړه پوښتنې کوي مثلاً: د بیت الله شریف د جوړېدو په وخت کې حجر اسود چا په خپل ځای کیښوده؟ کعبه څو ځلې جوړه شوې ده؟ د صحیح ځواب له اورېدلو څخه وروسته د نوي لوست سرلیک پر تخته لیکي او لوست پیلوي. | زده‌کوونکي دې په ډیر درنښت د خپل ښوونکي سلام ته ځواب ووایي، د خپل نوم په اوریدلو دې د حاضرۍ ځواب ورکړي، د ټولګي په تنظیم کې دې له ښوونکي سره پوره مرسته وکړي او کورنۍ دنده دې د کتنې لپاره پر میز کیږدي |
| ٢٥ دقیقې | **د لوست وړاندې کول:** ښاغلی ښوونکی له زده‌کوونکوڅخه غواړي چې د لوست متن په ورو ولولي او پخپله د لوست جانبي سرلیکونه پر تخته لیکي ، بیا دلوست عبارت په څو تنو زده‌کوونکو لولي او هغوی ته لاندې مطالب او مفاهیم په ساده او لنډو عباراتوسره داسې تشریح کوي چې د هرې سویې زده‌کوونکي ورڅخه ګټه واخلي.<br>١- پټ، ښکاره او له مکې مکرمې څخه بهر دعوت. | زده‌کوونکي پوښتنې کوي |

| | | |
|---|---|---|
| | ۲- د حرا په غار کې د وروستي ځل لپاره د پیغمبرﷺ پاتې کېدل او بالآخره ورته وحی راتلل.<br>ښاغلی ښوونکی د لوست په هر پړاو کې زده‌کوونکي له ځان سره ملګري کوي. د لوست په اړوند د زده‌کوونکو نظریې اوري، پوښتنو ته یې غوږ نیسي او سم ځواب ورکوي.<br>ښاغلی ښوونکی په لوست کې ورکړل شوی فعالیت په خپل ځای کې له زده‌کوونکو سره مطرح کوي. او په پای کې د لوست د مهمو ټکو خلاصه او لنډیز وړاندې کوي. | زده‌کوونکي دې د فعالیت په اجرا کې فعاله ونډه واخلي<br><br>زده‌کوونکي دې د لوست مهم ټکي په کتابچو کې ولیکي |
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>۱- مکي دور په دریو پړاوونو ویشل کیږي نومونه یې واخلئ؟<br>۲- ولې نبي کریم (ص)له پیغمبرۍ مخکې د حرا غار ته تشریف وړلو؟<br>۳- کله چې پیغمبر (ص)ورقه بن نوفل ته د وحې د نازلیدو خبر ورکړ د هغه عکس العمل څه و؟ | زده‌کوونکي دې پوښتنو ته په پوره غور سره ځوابونه ووایي |
| ۵ دقیقې | **د لوست لنډیز:**<br>د نبي کریم (ص) د پیغمبرۍ دوره په دوو برخو وېشل شوې ده، مکي او مدني، بیا مکي دوره په دریو برخو وېشل شوې ده:<br>۱- د پټ دعوت مرحله.<br>۲- د ښکاره دعوت مرحله، چې د بعثت تر لسم کا ل پورې یې دوام وکړ.<br>۳- له مکې څخه بهر اسلامي دعوت چلول، چې دې مرحلې د نبي کریم (ص) د ژوند تر آخره پورې دوام وکړ.<br>نبي کریم (ص) د رمضان په میاشت کې د حرا غار ته چې په جبل النور کې موقعیت لري، تللو او هلته به یې د الله تعالی عبادت کولو، څه وخت وروسته نبي کریم (ص) په همدې غار کې په عبادت بوخت و، الله تعالی جبرئیل علیه السلام له وحې سره ورته راولیږه، او د علق سورت لومړني پنځه مبارک آیتونه یې ورته نازل کړل. | زده‌کوونکي د ښوونکي خبرو ته په غور سره غوږ نیسي. |
| | **کورنۍ دنده**<br>د لوست مطالب په خپل تعبیر سره ولیکئ او هم ورته مناسب سرلیک غوره کړئ. | زده‌کوونکي دې کورنۍ دنده په کورونو کې ترسره کړي. |

**لسم لوست**:

**سرليك:** **د وحې د نزول ادامه**

**وخت:** **يو درسي ساعت (۴۵دقيقې)**

**موخې:** **زده‌کوونکي بايد:**

۱- د وحې د مختلفو ډولونو په هکله معلومات ترلاسه کړي.

۲- د دويم ځل لپاره د وحې له پيليدلو څخه خبر شي.

**ښوونکي ته اضافي معلومات:**

**الرؤيا الصالحة:** له هغو ريښتينو خوبونو څخه عبارت دي چې پکې زيرى وي او مبشرات ورته ويل کيږي او يا پکې د الله تعالى نه د غفلت خبرداری وي. چې منذرات ورته ويل کيږي، دا ډول خوبونه د الله تعالى له لوري وي.

**احلام:** احلام غيرصالحه خوبونو ته وايي او دا ډول خوبونه د شيطان وسوسې وي.

**وحې:** په لغت کې اشارې، کتابت، رسالت، الهام، ورو خبرې او هر هغه شي ته ويل کيږي چې بل ته وويل شي. او په اصطلاح کې وحې انبياءو عليهم السلام ته د الله تعالى د لارښوونې طريقه ده.

د وحې څنګېدو په موده کې چې دوه ځله پيښه شوې ده د علماؤو تر منځ اختلاف دی.

کله به پرښته د سړي په شکل کې نبيﷺ ته وحې راوړله، لکه د جبرائيل په حديث کې چې جبرائيلﷺ د سړي په شکل کې راغی او د ايمان، اسلام ، احسان په باره کې يې له نبيﷺ څخه پوښتنې وکړې.

د وحې آواز به د زنګ د کړنګاري په شان و او پيغمبرﷺ به ويل چې دا ډول وحې ماته ډېر تکليف راکوي. حضرت عايشه رضي الله تعالى عنها وايي چې که په سختې يخنۍ کې به دغسې وحې په رسول الله ﷺ راغله، نو مبارک وچولی به يې خولې کيده.

پرښتې به کله په خپل اصلي شکل کې وحې راوړله، لکه هغه وخت چې بيا د مدثر آيتونه نازل شول.

کله به الله تعالى خپل پيغمبر (ص) ته پرته له واسطې وحې نازلوله لکه: د معراج په کيسه کې الله تعالى بې له واسطې پيغمبرﷺ ته وحې وکړه.

**د تدريس طريقې:**

توضيحي، مباحثوي، پوښتنې او ځوابونه.

**د لوست مرستندويه توکي:** درسي کتاب، د سيرت النبي کتابونه، تخته، تباشير، نقشه.

د لوست بهیر:

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده‌کوونکو فعالیت |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | **سریزه:** ښاغلی ښوونکی تر هر څه لومړی د لوست د موضوع په اړوند ځان په ضروري معلوماتو سمبالوي، ټولګي ته په ورتللو زده‌کوونکو ته سلام اچوي، د احوال پوښتنه یې کوي د ټولګي نظم جوړوي، حاضري اخلي. ښاغلی ښوونکی د درسي فضا رامنځته کولو لپاره له زده‌کوونکو څخه د تیر لوست په اړه پوښتنه کوي لکه: وحې څه وخت، د چا په واسطه او پر چا باندې نازله شوه؟ د لومړي ځل لپاره وحې په کوم ځای کې نازله شوه؟ لدې څخه وروسته د نوي لوست سرلیك پر تخته لیکي او په لوست پیل کوي. | زده‌کوونکي دې په ډېر درنښت د خپل ښوونکي سلام ته ځواب ووايي، د خپل نوم په اوریدلو دې د حاضرۍ ځواب ورکړي، د ټولګي په تنظیم کې دې له ښوونکي سره پوره مرسته وکړي زده‌کوونکي ښوونکي ته متوجه کیږي |
| ۲۵ دقیقې | **د لوست وړاندې کول:** ښاغلی ښوونکی له زده‌کوونکوڅخه غواړي چې د لوست متن په ورو ولولي او پخپله د لوست جانبي سرلیکونه پر تخته لیکي ، بیا دلوست عبارت په څو تنو زده‌کوونکو لولي او هغوی ته لاندې مطالب او مفاهیم په ساده او لنډو عباراتوسره داسې تشریح کوي ترڅو د هرې سویې زده‌کوونکي ورڅخه ګټه واخلي.<br>۱- د وحې مراتب او دا چې د وحې پیل د خوبونو له لیدلو څخه وشو.<br>۲- د څه وخت ځنډېدو نه وروسته د وحې بیا نازلیدل.<br>ښاغلی ښوونکی د لوست د تشریح په ترڅ کې د هر مطلب په اړه له بیلو بیلو زده‌کوونکو سره مباحثه کوي د لوست په اړوند د زده‌کوونکو پوښتنو ته سم ځوابونه ورکوي.<br>ښاغلی ښوونکی کوښښ کوي تر څو زده‌کوونکي توهین او تحقیر نه کړي.<br>ښاغلی ښوونکی په لوست کې ورکړل شوی فعالیت له زده‌کوونکو سره په خپل ځای کې مطرح کوي.<br>وروسته بیا د مهمو ټکو په ګوته کولو سره د لوست لنډیز بیانوي. | زده‌کوونکي عبارت لولي<br>زده‌کوونکي ځواب وايي<br><br>زده‌کوونکي دې د فعالیت په اجرا کې فعاله ونډه واخلي<br>زده‌کوونکي دې د لوست مهم ټکي په کتابچو کې ولیکي |
| ۵ دقیقې | **د لوست لنډیز:**<br>۱- پیغمبر علیه السلام ته به په مختلفو ډولونو وحې کیدله: کله به ورته په خوب کې وحی راتله، کله به پرښته د سړي په شکل، کله به د زنګ د آواز په ډول، کله به په خپله اصلي څېره کې ورته راتله او کله به الله تعالی ورته پرته له واسطې وحې کوله، د لومړي ځل وحې نازلیدلو څخه وروسته بیا څو وخته وحې وځنډېله چې دا وخت په نبي کریم ﷺ باندې ډېر سخت تمام شو، خو څه وخت وروسته کله چې نبي کریم ﷺ د حرا په غار کې یوه میاشت تیره کړه او د | زده‌کوونکي دې په ډېر غور سره د ښوونکي خبرو ته غوږ شي |

| | | |
|---|---|---|
| | اعتکاف موده یې تیره شوه نو بیا الله تعالی وحې ورته نازله کړه چې له دې وحې څخه وروسته یې اسلامي دعوت پیل او په دې لاره کې یې کلکې مبارزې ته ملا وتړله. | |
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>۲- مکې دور په دریو پړاوونو ویشل کیږي نومونه یې واخلئ؟<br>۳- ولې نبي کریم ﷺ له پیغمبرۍ مخکې د حرا غار ته تشریف وړلو؟<br>کله چې پیغمبر (ص)ورقه بن نوفل د وحې له نازلیدو خبرکړ د هغه عکس العمل څه و؟ | زده کوونکي پوښتنو ته ځوابونه وایي. |
| | **کورنی دنده:**<br>ښاغلی ښوونکی زده کوونکو ته د کورنی د ندې په اړوند مناسبې لارښوونې کوي . | زده کوونکي دې کورنی دنده په کورونو کې ترسره کړي. |

## یوولسم لوست:

**سرلیک:** خدیجه رضي الله عنها

**وخت:** یو درسي ساعت (٤٥دقیقې)

**موخې:** زده‌کوونکي باید:

١. د خدیجې رضي الله عنها په هکله چې د رسول اللهﷺ لومړنۍ میرمنه وه معلومات ترلاسه کړي.
٢. د امهات المؤمنین په مطلب وپوهیږي.
٣. د دې لوست درسونه او عبرتونه د خپلې لارې مشال وګرځوي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

**لومړنۍ مؤمنه ښځه:** کله چې په نبي کریمﷺ باندې وحې نازله شوه، نو تر ټولو مخکې خدیجې رضي الله عنها په هغه باندې ایمان راوړ او هغه ته یې ډاډ او تسلي ورکړه.

بي بي خدیجې رضي الله تعالی عنها هغه د خپل تره زوی (ورقه بن نوفل) کور ته وروست، ورقه بن نوفل رسولﷺ ته ډاډ ورکړ او ورته یې وویل: پر تا باندې هغه پرښته نازله شوې کومه چې پر موسیٰ﵇ باندې نازلېده او ته د الله ﷻ رسول یې... .

بي بي خدیجه رضي الله عنها په اسلام کې د ډېر لوړ مقام خاونده او په رسول اللهﷺ باندې ډېره ګرانه وه او د هغې په ژوند کې یې بل واده ونه کړ.

**د تدریس طریقې:**

توضیحي، مباحثوي، پوښتنې او ځوابونه.

**د لوست مرستندویه توکي:** درسي کتاب، د سیرت النبي کتابونه، تخته، تباشیر

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده‌کوونکو فعالیت |
|---|---|---|
| ٥ دقیقې | **سریزه:** ښاغلی ښوونکی ټولګي ته له ننوتلو سره سم زده‌کوونکو ته سلام اچوي. د زده‌کوونکو د حال احوال پوښتنه کوي، ټولګی تنظیموي او حاضري اخلي. د تیر لوست په باره کې پوښتنې کوي لکه: د وحې ډولونه بیان کړئ؟ لدې څخه وروسته ښوونکی د زده‌کوونکو د هڅولو لپاره د نوي لوست په اړه له دوی څخه پوښتنې کوي مثلا وایي: حضرت خدیجه رضی الله عنها څوک وه؟ مقام او منزلت یې په اسلام کې څوک بیانولی شي؟ او بیا د نوي لوست سرلیک پر تخته لیکي او په لوست پیل کوي. | زده‌کوونکي دې په ډېر درنښت د خپل ښوونکي سلام ته ځواب ووایي، د خپل نوم په اوریدلو دې د حاضرۍ ځواب ورکړي، د ټولګي په تنظیم کې دې له ښوونکي سره پوره مرسته وکړي |
| ٢٥ دقیقې | **د لوست وړاندې کول:** ښاغلی ښوونکی له زده‌کوونکوڅخه غواړي چې د لوست متن په ورو ولولي او پخپله د لوست جانبي سرلیکونه پر تخته لیکي ، بیا دلوست عبارت په څو تنو زده‌کوونکو لولي او هغوی ته لاندې مطالب او مفاهیم په ساده او | |

| | | |
|---|---|---|
| | لنډو عباراتوسره داسې تشريح کوي چې د هرې سوېي زده‌کوونکي ورڅخه ګټه واخلي.<br>۱. خديجه رضي الله عنها د رسول الله ﷺ لومړنۍ ښځه وه چې ډېره مالداره وه او د رسول الله ﷺ د امانتدارۍ او اخلاص څخه متأثره شوه او له هغه څخه يې د نکاح غوښتنه وکړه.<br>۲. کله چې رسول الله ﷺ د الله تعالی له لوري مبعوث شو، نو خديجې رضي الله عنها په خپل مال او دولت سره د هغه ﷺ ملاتړ کاوه او نېکې مشورې به يې ورته ورکولې او د هغه ﷺ غم شريکه وه.<br>۳. د رسول الله ﷺ ټول اولادونه پرته له ابراهيم څخه د خديجې رضي الله عنها څخه وو او نارينه اولادونه يې په کوچينيتوب کې وفات شوي دي له دې امله به کفارو پيغمبر ﷺ ته د ابتر خطاب کولو چې په رد کې يې د الکوثر سورت نازل شو.<br>٤. د خديجې رضی الله عنها مړينه د رسول الله ﷺ لپاره ډېره لويه غميزه وه او د خديجې رضی الله عنها او د ابوطالب د مړينې کا ل د غم په کال ونومول شو.<br>۵. د رسول الله ﷺ بيبيانو ته د امهات المؤمنين لقب ورکړل شو.<br>ښاغلی ښوونکی د لوست دمتن دلوستلو پر مهال د زده‌کوونکو تيروتنې اصلاح کوي، ښه ويونکي ستايي او نور تشويقوي. د لوست پورې اړوندو د زده‌کوونکو پوښتنو ته ځواب وايي، په لوست کې ورکړل شوی فعاليت په خپل ځای کې له زده کونکو سره مطرحوي. ښاغلی ښوونکی له دې څخه وروسته د لوست لنډيز بيانوي. | زده‌کوونکي دې ښوونکي ته غوږ ونيسي<br><br>زده‌کوونکي دې خپلو کتابونو ته ځير شي<br>زده‌کوونکي دې د فعاليت په اجرا کې فعاله ونډه واخلي<br><br>زده‌کوونکي دې د لوست مهم ټکي په کتابچو کې ليکي |
| ۵ دقيقې | **د لوست لنډيز:**<br>خديجه رضي الله عنها د خويلد لور او د خپل وخت له نامتو ښځو څخه وه، هر کله به چې پيغمبر ﷺ ته کومه ستونزه پيښه شوه نو خديجه رضي الله عنها به ورسره ملګرې وه، خپل ټول مال يې د پيغمبر ﷺ په خدمت کې وقف کړ، د نبي کريم ﷺ اولادونه پرته له ابراهيم څخه نور ټول له حضرت خديجي رضي الله عنها څخه وو، يوازې ابراهيم د **مارية القبطية** څخه و چې هغه هم په ماشومتوب کې په مدينه کې وفات شو.<br>بی بی خديجه رضي الله عنها له هجرت څخه درې کاله وړاندې وفات شوه، او په فراق سره يې پيغمبر عليه السلام دومره غمجن شو چې له امله يې دغه کال د غم د کال په نامه ياد کړ، په اسلامي دعوت کې د پيغمبر عليه السلام د ميرمنو د پوره ونډې په اخيستلو سره الله تعالی دوی ته د امهات المؤمنين اعزازی لقب ور په برخه کړ. | زده‌کوونکي دې د ښوونکي خبرو ته په غور سره غوږ شي |
| ۱۰ | **ارزونه:** | زده‌کوونکي دې ځواب |

| دقيقې | ۱. خديجه رضي الله عنها څوک وه؟<br>۲. هغه لاملونه چې د پيغمبر ﷺ سره د خديجې رضی الله عنها د واده د ترغيب باعث شول څه وو؟ بيان يې کړئ.<br>۳. خديجې رضي الله عنها به نبي کريم (ص)سره همدردي کوله هغه ته به يې تسلي ورکوله، دا موضوع شرحه کړئ .<br>له امهات المؤمنين څخه مراد څوک دي؟ او دا ځانګړتيا چې الله تعالی هغوې ته ورپه برخه کړه څه مطلب افاده کوي؟ | ووايي |
|---|---|---|
| | **کورني دنده:**<br>د لوست عمده مطالب په خپل تعبير سره وليکئ،او يو مناسب سرليک ورته وټاکئ. | زده کوونکي دې کورنۍ دنده په کورونو کې ترسره کړي. |

## دولسم لوست:

**سرليک: پټه بلنه (سرّي دعوت)**

**وخت: يو درسي ساعت (۴۵دقيقې)**

**موخې: زده کوونکي بايد:**

۱- د پټې بلنې (سري دعوت) د پيل ټکی او لامل وپيژني.

۲- د پټې بلنې د اغيزې او مودې په اړه معلومات ترلاسه کړي.

۳- لدې لوست څخه پندونه او عبرتونه واخلي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

**د وحې ځنډېدل او دويم ځل وحې نازليدل:** د لومړي ځل وحې له نازلېدو څخه وروسته د څه وخت لپاره د وحې نازليدل و ځنډېدل خو له څه وخت وروسته کله چې د حرا په غار کې د نبي کريم ﷺ د اعتکاف موده پوره شوه او له غار څخه بهر شو ناڅاپه يې يو آواز واورېد. د دې آواز په اورېدلو يې د آسمان لوري ته وکتل او ويې ليدل چې هماغه ملائکه چې مخکې ورته راغلې وه په کرسی ناسته او د ده په لور را روانه ده. د دې حالت په ليدلو سره ډېر وارخطا شو او د کور په لور يې په ډېر تلوار سره حرکت وکړ. کله چې کور ته راورسېد حضرت بي بي خديجې رضي الله تعالى عنها ته يې وويل: ما وپېچه، ما وپېچه، هغې په يوه لمڅي کې تاو کړ، پدې وخت کې الله تعالى د مدثر سورت دا مبارک آياتونه نازل کړل: ((**يَا أَيُّهَا الْمُدَّثِّرُ (١) قُمْ فَأَنْذِرْ (٢) وَرَبَّكَ فَكَبِّرْ (٣) وَثِيَابَكَ فَطَهِّرْ (٤) وَالرُّجْزَ فَاهْجُرْ (٥) وَلَا تَمْنُنْ تَسْتَكْثِرُ (٦) وَلِرَبِّكَ فَاصْبِرْ (٧)**)) [المدثر : ١ - ٨] ژباړه: ای ځان نغښتونکی څملاستونکيه، پاڅيږه او خبرداری ورکړه، او د خپل رب لويي اعلان کړه، او خپلې جامې پاکې وساته، او له چټلی څخه په څنگ اوسه، او د زيات عوض تر لاسه کولو لپاره احسان مه کوه، او د خپل رب په خاطر صبر وکړه. د دې مبارکو آيتونو له نازليدلو څخه وروسته نبي کريم ﷺ په پټه توگه د الله تعالى دين ته د خلکو بلل پيل کړل.

نبي کريم ﷺ د مصلحت له مخې په لومړي سر کې په پټه بلنه پيل کړه، ځکه هغه قوم چې رسول الله ﷺ د اسلام دين ته دعوت کولو ټول مشرکان او د بتانو عبادت کوونکي وو. دوی ويل چې زموږ پلرونو د دې بتانو عبادت کړی موږ يې هم کوو. له بل پلوه په دوی کې منطق نه چليده بلکې د ستونزو حل يې د تورې له لارې کاوه، نو پداسې شرائطو کې د حکمت غوښتنه دا وه چې بلنه بايد په پټه مخکې ولاړه شي، د لومړنيو مسلمانانو له ډلې څخه ام المؤمنين حضرت بي بي خديجه بنت خويلد، ابوبکر صديق، علي بن ابي طالب او زيد بن حارثه وو. دا ډله د دعوت په لومړنۍ ورځ په اسلام مشرفه شوه. بيا عثمان بن عفان، زبير بن عوام، عبدالرحمن بن عوف، سعد بن ابي وقاص او طلحه بن عبيد الله د ابو بکر صديق په بلنه په اسلام مشرف شول چې دوی هم د اسلام له لومړنيو مخکښانو څخه شميرل کيږي. له هغه وروسته ابو عبيده عامر بن جراح، ابو سلمه بن عبدالاسد، ام المؤمنين ام سلمه، ارقم بن ابي ارقم، عثمان بن مظعون، عبدالله بن جحش، عبدالله بن مسعود، مسعود بن ربيعه، بلال بن رباح حبشي، صهيب بن سنان رومي، عمار بن ياسر او د هغه پلار ياسر، مور يې سميه او عامر بن فهيره په اسلام مشرف شول.

**د تدريس طريقې:**

توضيحي، مباحثوي، گروپي کار، پوښتنې او ځوابونه

**د لوست مرستندويه توکي:** درسي کتاب، د سيرت النبي کتابونه، نقشه، تخته او تباشير.

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده‌کوونکو فعالیت |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | **سریزه:**<br>ښاغلی ښوونکی ټولګي ته له داخلېدلو سره سم سلام اچوي، د زده‌کوونکو د حا ل پوښتنه کوي، حاضري اخلي او د ټولګي نظم جوړوي.<br>د تیر لوست په باره کې له زده‌کوونکو څخه پوښتنې کوي لکه: له ټولو څخه مخکې چا په نبي کریم  باندې ایمان راوړ؟ لدې څخه وروسته له زده‌کوونکو څخه د نوي لوست په اړوند هڅوونکې پوښتنې کوي لکه: پیغمبر ﷺ څه ډول خپل دعوت پیل کړ؟ او وروسته بیا د نوي لوست سرلیك پر تخته لیکي او لوست پیلوي. | زده‌کوونکي دې په ډیر درنښت د خپل ښوونکي سلام ته ځواب ووایي، د خپل نوم په اوریدلو دې د حاضرۍ ځواب ورکړي، د ټولګي په تنظیم کې دې له ښوونکي سره پوره مرسته وکړي<br><br>زده‌کوونکي دې ځواب ووایي |
| ۲۵ دقیقې | **د لوست وړاندې کول:**<br>ښاغلی ښوونکی له زده‌کوونکوڅخه غواړي چې د لوست متن په ورو ولولي او پخپله د لوست جانبي سرلیکونه پر تخته لیکي ، بیا دلوست عبارت په څو تنو زده‌کوونکو لولي او هغوی ته لاندې مطالب او مفاهیم په ساده او لنډو عباراتوسره داسې تشریح کوي ترڅو د هرې سویې زده‌کوونکي ورڅخه ګټه واخلي.<br>۱- زده‌کوونکي پر دې مطلب پوهول چې پیغمبرﷺ ولې خلك په پټه دین ته رابلل.<br>۲- زده‌کوونکو ته د بلنې د پیل نقطې په ګوته کول.<br>۳- د پټې بلنې د مودې د پیل او ختم په اړه زده‌کوونکو ته معلومات ورکول.<br>ښاغلی ښوونکی زده‌کوونکي له ځان سره شریکوي او د هرمطلب د تشریح پر مهال له بیلا بیلو زده‌کوونکو سره مباحثه کوي، زده‌کوونکو ته د خپلو نظریو د ښکاره کولو موقع ورکوي، پر ځای انتقاد یې مني او مثبت ځوابونه ورکوي.<br>ښاغلی ښوونکی په لوست کې ورکړل شوی فعالیت په خپل ځای کې له زده‌کوونکو سره مطرحوي.<br>په پای کې ښوونکی د لوست مهم ټکي په نښه کوي او د لنډیز په شکل یې زده‌کوونکو ته وړاندې کوي. | زده‌کـــوونکي دې د عبـــارت لوستلو پر مهال خپلو کتابونو ته ځیر شي د ښوونکي خبرې دې په غور واوري او د فعالیت په اړه دې خپل نظریات په ډاډه زړه بیان کړي<br><br>زده‌کوونکي دې د لوست مهم ټکي په کتابچو کې ولیکي |
| ۵ دقیقې | **د لوست لنډیز:**<br>کله چې پیغمبر  ته د انذار (له الله تعالی څخه د خلکو د وېرولو) امر وشو نو پیغمبر ﷺ د الله تعالی له امر سره سم په پټه (سري ډول) | زده‌کوونکي دې په ډېر غور سره د خپل ښوونکي خبرو ته غوږ شي |

| | | |
|---|---|---|
| | دعوت پیل کړ، لومړی یې هغه خلك اسلام ته دعوت کړل چې د ښو صفاتو لرونکي وو، چا چې پدغه وخت کې د پیغمبر دعوت ته لبیك ویلی دی هغوی ته الله تعالی د (السابقون الاولون) مقام ورکړ، چې پدې کې تر ټولو مخکې حضرت خدیجې، حضرت ابوبکرصدیق، حضرت علي، حضرت زید بن حارثه رضوان الله علیهم اجمعین ایمان راوړی دی، او له ایمان راوړلو څخه وروسته هر یوه یې اسلامي دعوت خپل مسؤلیت وباله او پدی لاره کې یې فعاله ونډه واخسته، دری کاله دعوت په همدی ډول جریان درلود تر څو چې پیغمبر ﷺ د الله تعالی له لوري په ښکاره بلنه مامور کړ شو. | |
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>۱- رسول الله (ص)پټ دعوت څرنګه پیل کړ او څومره موده یې دوام وکړ؟<br>۲- د لومړنیو مسلمانانو له جملې څخه د پنځو کسانو نومونه واخلئ. | زده کوونکي دې د ارزونې پوښتنو ته ځواب ورکړي. |
| | **کورنی دنده:**<br>د لوست عمده مطالب په خپل تعبیر سره ولیکئ، او یو مناسب سرلیک ورته وټاکئ. | زده کوونکي دې کورنی دنده په کورونوکې ترسره کړي. |

## دیارلسم لوست:

**سرلیک:** **دارالارقم (د رهبرۍ مرکز)**

**وخت:** **یو درسي ساعت (۴۵دقیقې)**

**موخې: زده‌کوونکي باید:**

۱- د دعوت د لومړۍ مرحلې د مرکز په هکله معلومات تر لاسه کړي.

۲- دارقم بن ابي الارقم په اړه معلومات تر لاسه کړي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

**د ارقم کور:** ارقم بن ابي الارقم د بني مخزوم د قبیلې د لومړنیو مسلمانانو له جملې څخه و، اولس کلن و چې ایمان یې راوړ او خپل کور یې د دعوت لپاره وقف کړ.

دار الارقم د بعثت له دریم کال څخه د بعثت تر شپږم کال پورې د اسلامي دعوت مرکز او د پیغمبر د اصحابو لپاره یې د پناه ځای حیثیت درلود. ارقم بن ابی الارقم د پیغمبرﷺ سره په ټولو غزاګانو کې د یوه سرښندونکي مجاهد په حیث ګډون کړی دی.

رسول اللهﷺ ده ته د زکات راټولولو دنده سپارلې وه او د رسول اللهﷺ د ژوند ترپایه یې په پوره امانتدارۍ سره ترسره کړه. نوموړی جلیل القدر صحابي د هجرت په ۵۳ یا ۵۵ کال د ۸۳ یا ۸۵ کالو په عمر وفات او د بقیع په هدیره کې خاورو ته وسپارل شو.

**د تدریس طریقې:**

توضیحي، مباحثوي، پوښتنې او ځوابونه

**د لوست مرستندویه توکي:** درسي کتاب، د سیرت النبي کتابونه، تخته او تباشیر.

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده‌کوونکو فعالیت |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | **سریزه:** ښاغلی ښوونکی ټولګي ته له ننوتلو سره سم سلام اچوي. د زده‌کوونکو د احوال پوښتنه کوي، حاضري اخلي، بیا د مخکیني لوست په هکله پوښتنې کوي لکه: پیغمبرﷺ ولې خلک په پټه دین ته رابلل او دا بلنه یې له چا څخه پیل کړه او څو کاله یې دوام وکړ؟ لدې څخه وروسته په زده‌کوونکو کې د انګیزې پیدا کولو په غرض له دوی څخه د نوي لوست په اړه پوښتنې کوي لکه: ارقم بن ابي الارقم څوک و؟ نوموړي صحابي د پیغمبر ﷺ په ژوند څه دنده تر سره کوله؟ لدې څخه وروسته د نوي لوست سرلیک پر تخته لیکي او په لوست پیل کوي. | زده‌کوونکي دې په ډېر درنښت د خپل ښوونکي سلام ته ځواب ووایي، د خپل نوم په اوریدلو دې د حاضرۍ ځواب ورکړي، د ټولګي په تنظیم کې دې له ښوونکي سره پوره مرسته وکړي زده‌کوونکي دې ځواب ووایي |
| ۲۵ دقیقې | **د لوست وړاند کول:** ښاغلی ښوونکی له زده‌کوونکوڅخه غواړي چې د لوست متن په ورو | |

| | | |
|---|---|---|
| | ولولي او پخپله د لوست جانبي سرليکونه پر تخته ليکي ، بيا دلوست عبارت په څو تنو زده‌کوونکو لولي او هغوی ته لاندې مطالب او مفاهيم په ساده او لنډو عباراتوسره داسې تشريح کوي چې د هرې سويې زده‌کوونکي ورڅخه ګټه واخلي.<br>۱- زده‌کوونکو ته د دعوت د لومړنۍ مرحلې د مرکز په هکله معلومات.<br>۲- د دې مرکز د غوره کولو پرلاملونو د زده‌کوونکو پوهول.<br>ښاغلی ښوونکی د لوست مفهوم تشريح کوي.<br>ښاغلی ښوونکی زده‌کوونکو ته داسې روحيه ورکوي چې په لوست کې ورته پيښې ستونزې په جرأت له ښوونکي سره مطرح کړي.<br>په لوست کې ورکړل شوی فعاليت په خپل ځای کې له زده‌کوونکو سره مطرح کوي.<br>په آخر کې د لوست لنډيز په ساده او آسانو الفاظو وړاندې کوي. | زده‌کوونکي دې د ښوونکي خبرې په غور واوري او په لوست کې ورپيښې ستونزې دې له ښوونکي سره مطرح کړي.<br>زده‌کوونکي دې د فعاليت په اجرا کې پوره ونډه واخلي.<br>زده‌کوونکي دې د لوست مهم ټکي په کتابچو کې وليکي. |
| **۵ دقيقې** | **د لوست لنډيز:**<br>۱- د ارقم رضي الله عنه کور پيغمبر د سري دعوت مرکز وګرځولو، ځکه چې پر ده د هيچا دا ګمان نه کيده چې دی مسلمان شويدی. او له بل پلوه د قبيلوي تړاونو له مخې دی د پيغمبر ﷺ د قبيلې له مخالفې قبيلې څخه و. د ارقم کور د بعثت له دريم کال څخه د بعثت تر شپږم کال پورې د اسلامي دعوت مرکز او د پيغمبر د اصحابو د پناه ځای و. | زده‌کوونکي دې د خپل ښوونکي خبرو ته ښه په غور سره غوږ شي. |
| **۱۰ دقيقې** | **ارزونه:**<br>۲- ارقم بن ابي ارقم څوک و؟<br>۳- اصحابو په دار الارقم کې څه زده کول؟<br>ولی دارالأرقم د غونډو لپاره مرکز وټاکل شو؟ | زده‌کوونکي دې د ارزونې پوښتنې په صحيح ډول ځواب کړي. |
| | **کورنۍ دنده:**<br>د لوست عمده مطالب په خپل تعبير سره وليکئ او يو مناسب سرليک ورته وټاکئ. | زده‌کوونکي دې کورنۍ دنده په کورونوکې ترسره کړي. |

## لومړی لوست

**درس:** اتم
**سرلیک :** طهارت (پاکي)
**مخ: ۲۰**
**وخت :** یو درسي ساعت (٤٥دقیقې)
**موخې:** زده‌کوونکي باید:
**الف:** د طهارت له معنا، ډولونو، او د پاکوالي له طریقو سره اشنا شي، او بیت الخلا ته د تلو آداب زده کړي.
**ب:** له حقیقي او حکمي نجاست څخه د نظافت او پاکي لارې، او د بیت الخلا آداب په عملي ډول زده کړي.
**ج:** د نظافت اهمیت او د هغه د رعایت کولو حس یې په ذهن کښې پاتې شي.
**اضافي معلومات:**
په اسلام کښې د پاکۍ غوره والی:
۱. پاکي د لمانځه کلي ده، تاسو کولای شئ په دې هکله د مائدې سورت اتم مبارک آیت ته مراجعه وکړئ، نبي کریم ﷺ فرمایي: (**مِفْتَاحُ الصلاة الطهور**) ″ د لمانځه کلي پا کي ده″.

پاکي نیم ایمان دی، لکه چې رسول الله ﷺ فرمایلي دي ( **الطهور شطر الایمان**)، ″ پاکي د ایمان برخه ده ″. دغه طهارت عام دی، مادي او معنوې دواړو ته شاملیږي.

۳. پاکوالی د الله تعالي ﷻ د رضا سبب ګرځي، الله تعالي فرمایي: ((إِنَّ ٱللَّهَ يُحِبُّ ٱلتَّوَّٰبِينَ وَيُحِبُّ ٱلْمُتَطَهِّرِينَ ))[٤]. ″ د الله هغه خلک خوښیږي چې له بدۍ نه لاس واخلي او سپیڅلتیاغوره کوي″.
٤. طهارت او پاکي د قیامت په ورځ د څیرې د نورانیت او سپین والي سبب کیږي.
په حدیث شریف کښې راغلي دي: (**إِنَّ أُمَّتِي يُدْعَوْنَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ غُرًّا مُحَجَّلِينَ مِنْ آثَارِ الْوُضُوءِ، فَمَنِ اسْتَطَاعَ مِنْكُمْ أَنْ يُطِيلَ غُرَّتَهُ فَلْيَفْعَلْ**)، ″ بې له شکه زما امت به دقیامت په ورځ په داسې حال کې رابلل کیږي چې مخونه، لاسونه، او پښې به یې د اوداسه د نښانو په توګه نوراني او ځلانده وي، نو څوک چې ددغه نورانیت او ځلا سره مینه لري هغه دې دغه فضیلت دډیرو اودسونو په کولو سره لا زیات کړي″.

۵. په دې کښې شک نشته چې د پاکوالي رعایت کول له ناروغیو څخه د ځان ساتنې اوپه ټولنه کې د هغو د خپریدو د مخ نیوي ډیر مهم لامل ګڼل کیږي، له همدې امله اسلام د ځان او جامو پاکوالي ته ډیر ارزښت ورکوي، الله تعالي فرمایي: ﴿وَثِيَابَكَ فَطَهِّرْ ﴾[٥]. ″او خپلې جامې پاکې وساته″.
رسول الله ﷺ د چاپیریال پاک ساتلوته هڅونه کړي ده فرمایي:{ **اتَّقُوا اللَّعَّانَيْنِ قَالُوا : وَمَا اللَّاعِنَانِ يَا رَسُولَ اللَّهِ ؟ قَالَ: الَّذِي يَتَخَلَّى فِي طَرِيقِ النَّاسِ أَوْ فِي ظِلِّهِمْ** }، "له دوو کسانو څخه چې د لعنت وړ عمل سر ته رسوی مه کیږئ، صحابه کرامو وویل: دا د لعنت وړ دوه کارونه کوم دي؟ ویې فرمایل : د خلکو د تګ راتګ په لاره او ددوي دسیوري په ځایونو کښې قضاې حاجت کول".

---
[٤] – البقرة: ۲۲۲.
[٥] – المدثر: ٤

**د نجاست پاکولو طریقه:** که نجاست ښکاره او په سترګو لیدل کیږي، هغه په اوبو او یا بل مائع او بهیدونکي شي چې نجاست وربانديې لرې کیدای شي پاکیږي، که د نجاست اثر بیاهم پاتي شي باک نه لري.
او که نجاست ښکاره نه وي یعنې نجاست د جامې مخالف رنګ ونه لري، په مینځلو پاکیږي، او دلته دمینځونکي غالب ګمان ته اعتبار ورکول کیږي، که یې ګمان شو چې جامه پاکه ده همدومره کفایت کوي، او غالب ګمان هم په دریو ځلو مینځلو سره رامنځ ته کیږي.

**د تدریس لارې:** شرحه کول، پوښتنه او ځواب، او تمثیل.
**مرستندویه درسي توکي:** کتاب، تخته، تباشیر او نور.
**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | **سریزه:**<br>محترم ښوونکی له سلام او روغبړ، د حاضري له اخیستلو، د ټولګي د نظافت له ترتیب او کنترول څخه وروسته د درس د مضمون (فقهې) په هکله یو څه معلومات ورکوي او د زده کوونکو ذهن د هغې عمده موضوعاتو ته لکه، طهارت، لمونځ، روژه، زکات او حج ته اړوي ( ښه ده ددې موضوعاتو نومونه پر تخته ولیکي).<br>له دې وروسته محترم ښوونکی زده کوونکي نوي درس ته هڅوي:<br>ایا پوهیږئ چې د لمانځه له پیل څخه دمخه څه باید وشي؟ | زده کوونکي د سلام ځواب ورکوي.<br><br>زده کوونکي یاداشت اخلي. |
| ۲۵ دقیقې | **ددرس وړاندې کول:**<br>۱- محترم ښوونکی د نوي درس عنوان چې (طهارت او پاکي) دی پر تخته لیکي او په اسلام کښې د پاکۍ په هکله یو څه معلومات ورکوي، وروسته له زده کوونکو څخه غواړي چې په کراره او چوپتیا سره درس ولولي او ستونزمن ځایونه په نښه کړي. او پخپله جانبي سرلیکونه پر تخته لیکي.<br>۲- له څو تنو کمزورو زده کوونکو څخه غواړي چې یو یو پراګراف په لوړ غږ سره ولولي.<br>۳- له هغه وروسته سرلیکونه په هغه ترتیب شرحه کوي چې پر تخته یې لیکلي دي.<br>۴- محترم ښوونکی د کتاب لومړی او دویم فعالیت د لارښوونې سره سم سر ته رسوي، وروسته د بیت الخلا آداب شرحه کوي او له زده کوونکو څخه غواړي چې ددغو آدابو د حکمتونو په هکله بحث وکړي.<br>۵- په پای کښې که زده کوونکي څه پوښتنې لری هغو ته ځواب وایي. او د لا زیاتې ډاډیینې لپاره د زده کوونکو ارزونه کوي. | زده کوونکي دې په آرام ډول درس ولولي.<br><br>کمزوري زده کوونکي یې لولي.<br><br>زده کوونکي یې اجرا کوي. |

| | | |
|---|---|---|
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>۱. طهارت تعریف کړئ؟<br>۲. د طهارت د مشروعیت دلیل څه دی؟<br>۳. طهارت په څو ډوله دی؟<br>٤. بیت الخلا ته د تلو آداب څه دي؟ | زده‌کوونکي ځواب ورکوي. |
| ۵ دقیقې | **ددرس لنډیز:**<br>د طهارت لغوي او اصطلاحي معنا مو وپېژندله. له نجاسته طهارت په دوه ډوله حقیقي او حکمي ویشل کیږي، حکمي نجاست په غسل، اودس یا تیمم، او حقیقي نجاست په اوبو ایسته کیږي. | زده‌کوونکي غوږ نیسي. |
| | **کورنی دنده:**<br>محترم ښوونکی درسي کتاب ته په کتنې سره زده‌کوونکو نه کورنې دنده ورکوي. | |

## دويم لوست

**سرليك:** استنجا او نجاست

**مخ:** ۲۲–۲۳

**وخت:** يو درسي ساعت

**موخې:** زده‌کوونکي بايد :

**الف:** د استنجا تعريف، وسائل او حکم زده کړي، همدا شان د نجاست معنا، ډولونه او د هغه له معاف شوې اندازې سره اشنا شي.

ب: په زده‌کوونکو کې له نجاست څخه د ځان او جامو د پاک ساتلو روحيه پيدا شي.

ج– د پورتنيو مطالبو عملي مهارت پيدا کړي.

**اضافي معلومات:**

له استنجا څخه مخکې استبراء کول يعنې د پاتې بولو او غائطو له خپل ځايه لرې کول(اودس وچول) لازمي دي، څو ډاډه شي چې د نجاست په ځای(اندام) کښې يې نور څه نه دې پاتې شوي، او دغه کار هر څوک د خپل عادت سره سم سرته رسولای شي، لکه په غټو متيازو کې د ناستې له لاري، او په بولو(تشو) کې د دريدو کيناستو، پر لارې تګ، او دې ته ورته چارو په واسطه.

کله چې نجاست له مخرج(وتلو ځای) څخه ديوه درهم له اندازې څخه زيات تيری وکړي، استنجا يعنې په اوبو يې مينځل فرض دي او لمونځ کول ورسره روا نه دي.

که د يوه درهم په اندازه تيری و نه کړي، نو په اوبو يې پاکول واجب دي. په اوبو استنجا کول غوره ده. که څوک د سختې ناروغی له امله د استنجا وس ونه لري، له هغه څخه ساقطه ده.

غوره داده چې په استنجا کښې له بې ارزښته شيانو څخه لکه تيږه، زوړ ټوکر، د تشناب کاغذ او داسې نورو څخه کار واخستل شي، او د استنجا لپاره يو مناسب ځای چې له سترګو پناه وي او عورت يې هم پټ وي د ځان لپاره غوره کړي.

**د نجاست معنا:** په پليتي باندې د ځان، جامو، او ځاي ککړتيا ته وايي، په داسې توګه چې شريعت هغه پاک ونه ګڼي او د هغه د پاکولو امر وکړي.

د نجاست د پاکولو د څرنګوالي په هکله بايد ووايوچې: د نجاست د اثر له لري کولو څخه مقصد دادی چې تر وروستي حده (تر څو چې مشقت نه وي) هڅه وکړي، چې کله يې ښه ومينځه او غالب ګمان يې شو چې نجاست لري شوی دی، نو که اثر يې پاتې هم شي باك نه لري.

**د تدريس لارې:** شرحه کول، پوښتنه او ځواب، تمثيل.

**مرستندويه درسي توکي:** کتاب، تخته، تباشير او نور.

ددرس جريان:

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده‌کوونکو فعالیت |
|---|---|---|
| ۵دقیقې | **سریزه:**<br>محترم ښوونکی له سلام او روغبړ، د حاضري لـه اخستلو، د ټولګي د نظافت له ترتیب او کنترول څخه وروسته، کورنی کار ګوري.<br>څوك کولای شي د طهارت په هکله معلومات ورکړي؟<br>محترم ښوونکی زده‌کوونکي نوي درس ته هڅوي:<br>ایا پوهیږئ چې نجاست څه شـی د ی او انسان بایـد لـه قضـای حاجـت څخه وروسته خپل ځان څه ډول پاك کړي؟ | زده‌کوونکي د سلام ځواب ورکوي.<br><br>زده‌کـــوونکي ځـــواب ورکوي. |
| ۲۵ دقیقې | **ددرس وړاندې کول:**<br>۱- محترم ښوونکی د نـوي درس عنـوان( اسـتنجا او نجاسـت) پـر تختـه لیکي، بیا څه د استنجا د تعریف، حکم په هکله معلومات ورکوي.<br>۲- له زده‌کوونکو څخه غـواړي چـې درس پـه کـرارۍ او چوپتیـا سـره ولولي او ستونزمن ځایونه په نښه کړي، او په دې تـرڅ کښـې ښـوونکی کولای شي چې څنګلوري سرلیکونه د پوښتنې په ډول پر تخته ولیکي.<br>۳- له څو تنو کمزورو زده‌کوونکو څخه غواړي چې یو یو پراګراف پـه لوړ غږ سره ولولي.<br>۴- ورسته د زده‌کوونکو پام د هغو پوښتنو ځوابونو ته راګرځوي چې پر تخته یې لیکلي دي.<br>ددې پوښتنې له مطرح کولو وروسته چې ( تاسو د نجاست په هکلـه څـه معلومات لرې؟) د نجاست د معنا اوډولونو په شرحه کولو پیل کوي.<br>۵- محترم ښوونکی لومړی درس د لاربښووني سره سـم سـر تـه رسـوي، وروسته د نجاست بښل شوې برخه شرحه کوي، او له زده‌کوونکو څخه غواړي چې د دویم فعالیت په اجرا کولو سره ددې اسانتیا د حکمتونو په هکله بحث وکړي.<br>۵- په پای کښې د لا زیاتې ډاډیینې لپاره د زده‌کوونکو ارزونه کوي. | زده‌کوونکي دې په کـرارۍ او چوپتیا سره درس لولي.<br><br>کمـزوره زده‌کـوونکي یـې لولي.<br><br>زده‌کـــوونکي پـــرې بحـــث کوي. |
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>لاندې اصطلاحات تعریف کړئ:<br>۱. استنجاء، غلیظه او خفیفه نجاست.<br>۲. لاندې اصطلاحاتو ته مثالونه راوړئ:<br>غلیظه نجاست، خفیفه نجاست. | |
| ۵ دقیقې | **ددرس لنډیز:**<br>په عادي حالاتو کښې استنجا مؤکد سنت ده. نجاست په دوه ډولـه دی : | زده‌کـــوونکي دې غـــوږ ونیسي. |

| | | |
|---|---|---|
| | حکمي او حقیقي. حکمي نجاست هم دوه ډوله دی: لویه بې اودسي، او وړوکې بې اودسي. حقیقي نجاست هم دوه ډوله دی: غلیظه او خفیفه. له غلیظه جامد نجاست څخه دیوه درهم په اندازه (تقریبا دری ګرامه) او له مائع ډوله څخه یې د لاس د ورغوي په اندازه (٦ سانتي مترمربع) معاف دی، او د نجاست له خفیفه ډول څخه د جامې یا بدن له یو څلورمې څخه کمه اندازه معاف ده. | |
| | **کورنی دنده:**<br>محترم ښوونکی کتاب ته په کتنې سره زده‌کوونکو ته د لارښوونې سره سم کورنۍ دنده ورکوي. | |

**دریم لوست** :

**سرلیک:** اودس

**مخ:** ۲۲٤-۲٦

**وخت:** یو درسي ساعت ( ٤٥ دقیقې)

**موخې:** زده کوونکي باید:

**الف:** داوداسه تعریف، حکم، فرضونه، سنتونه، آداب او ماتوونکي زده کړي.

**ب:** د اودس کولو مهارت په سمه توګه پیدا کړي.

**ج:** د اوداسه مادي او معنوي ګټې یې په ذهن کې کیني.

**اضافي معلومات:**

وُضوء(اودس) د واو په ضمي سره د روښنايي او ښکلا په معنا دی، او د واو په فتحې سره هغو اوبو ته وايي چې په هغو اودس کیږي. اودس لکه چې په دنیا کښې د پاکی او راحت سبب کیږي، په آخرت کښې هم دهغه نښې د بدن په اعضاؤ ښکاره کیږي، دلیل یې هغه حدیث دی چې په اتم لوست کښې تیر شو.

**د اوداسه فضیلت:** رسول الله ﷺ فرمايي: {**مَنْ تَوَضَّأَ فَأَحْسَنَ الوضوءَ، خَرَجَت خَطَايَاهُ مِنْ جسَدِهِ حتَّى تَخْرُجَ مِنْ تحتِ أَظفارِهِ**}، " څوک چې په ښه ډول (د آدابو او شرطونو په رعایتولو) سره اودس وکړي، دهغه ګناوې له ټول بدن څخه، آن د نوکانو له بیخونو څخه وځي".[٦٦٦]

د اوداسه له مهمو شرطونو څخه یو دادی چې د اوبو رسیدلو موانع لرې کړای شي، چې په اوداسه کې دهغو مینځل فرض دي. نو د نوکانو رنګ چې ځینې میرمني یې لګوي، د اوبو د رسیدلو مانع ګرځي نو تر څو چې هغه لیري نه شي اودس صحت نه صحي کیږي.

**د تدریس تګ لاره:** شرحه کول، پوښتنه او ځواب، او تمثیل.

**مرستندویه درسي توکي:** کتاب، تخته، تباشیر او نور.

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | **سریزه:**<br>محترم ښوونکی له سلام او روغبړ، د حاضري له اخیستلو، د ټولګي د نظافت له ترتیب او کنترول څخه وروسته، د وخت په پام کښې لرلو سره کورنی کار ګوري.<br>محترم ښوونکی د مخکیني درس ارزونه کوي:<br>څوک کولای شي د طهارت په هکله معلومات ورکړي؟<br>محترم ښوونکی زده کوونکي نوي درس ته هڅوي:<br>تر اوسه چې مو څه وویل هغه د اوداسه کولو لپاره سریزه وه، نو ایا تاسې په دې پوهیږئ چې اودس څه شی دی او څنګه تر سره کیږي؟ | زده کوونکي د سلام ځواب ورکوي.<br><br>زده کوونکي ځواب ورکوي. |
| ۲۵ دقیقې | **ددرس وړاندې کول:**<br>۱- محترم ښوونکی د نوي درس سرلیک (اودس) پر تخته لیکي، وروسته یوه زده کوونکې ته لارښونه کوي چې درس په لوړ غږ سره ولولي. | زده کوونکي په کراری او چوپتیا سره درس لولي. |

[٦٦٦] - مسلم یې روایت کړی دی.

| | | |
|---|---|---|
| | ۲- له هغه وروسته محترم ښوونکی یو څه د اوداسه په هکله معلومات وړاندې کوي، لومړی فعالیت د لارښوونې سره سم اجرا کوي.<br>۳- بیا د اوداسه فرضونه شرحه کوي، عملا یې ورښیي، او له څو تنو زده‌کوونکو څخه غواړي چې د اوداسه فرضونه عملا تمثیل کړي.<br>۴- محترم ښوونکی د درس په دوام کښې د اوداسه سنتونه، او مستحبات شرحه کوي، او د درسي کتاب فعالیت د لارښوونې سره سم سرته رسوي.<br>۵- ددرس په پای کښې د اوداسه مکروهات او ماتوونکي شرحه کوي، او ددرس دویم فعالیت له لارښووني سره سم تر سره کوي، او که زده کوونکې څه پوښتنه لري، ځواب ورکوي.<br>او په اخیر کښې د لا ډاډېینې لپاره د زده‌کوونکو ارزونه کوي. | زده کوونکې تمثیل کوي.<br><br>زده‌کوونکي یې تر سره کوي. |
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>۱- د اوداسه فرضونه بیان کړئ؟<br>۲- د اوداسه سنتونه بیان کړئ؟<br>۳- د اوداسه آداب بیان کړئ؟<br>٤- د اوداسه مکروهات کوم دي؟<br>۵- د اوداسه ماتوونکي بیان کړئ؟ | زده‌کوونکي ځواب ورکوي. |
| ۵ دقیقې | **ددرس لنډیز:**<br>د معلومو اعضاؤ مینځلو او مسح کولو ته اودس ویل کیږی.<br>اودس څلور فرضه لري. او موږ د اوداسه له پنځو سنتونو، او پنځو آدابو او مستحباتو سره اشنا شوو، او دا مو وویل چې دسنتو او ادابو پریښودل مکروه دي، او د اوداسه ماتوونکي اته وو. | زده‌کوونکی غوږ نیسي. |
| | **کورنی دنده:**<br>محترم ښوونکی کتاب ته په کتنې سره زده‌کوونکو ته د لارښوونې سره سم کورنی دنده ورکوي. | |

**څلورم لوست:**

**سرليک:** تيمم

**مخ:** ۲۷– ۲۹

**وخت:** يو درسي ساعت(۴۵ دقيقې)

**موخې:** زده کوونکی بايد:

**الف:** د تيمم تعريف، او هغه ضرورتونه وپيژني چې تيمم ورباندې روا کيږي. د تيمم د کولو له طريقې، شرطونو او دهغه له ماتوونکو سره اشنا شي او پر موزو د مسحې احکام په سم ډول وپيژني.

ب: د تيمم کولو او په موزو د مسحې کولو مهارت پيدا کړي.

**اضافی معلومات:**

ددې لپاره چې اسلام طهارت ته ډيره پاملرنه لري، ان په داسې حالاتو کښې چې که انسان د حقيقی طهارت له کولو څخه بې وسه شی هم ورڅخه غواړي چې حکمي طهارت ته مخه کړي، تر څو د شريعت سره سم پاک شی او همدا شان يې د طهارت معنا او ارزښت په ذهن کښې پاتې، او هغه يې عادت جوړشي، ځکه امکان لري انسان له حقيقی طهارت څخه تر يوې اوږدې مودې پورې عاجز پاتی شي، نو د دې لپاره چې د طهارت معنا هيره نه شي او د هغه په پرېښودلو عادت پيدا نه کړی، اسلام حکمی طهارت ته مشروعيت ورکړی دی تر څو د حقيقي طهارت لپاره رمز وي، او همدغه د تيمم، او پر پټی او موزو د مسحی له حکمتونو څخه ګڼل کيږي، او بل حکمت يې د آسانی رامنيځ ته کول دي.

**د تيمم د مشروعيت دليل:** الله تعالي ج فرمايي:((**يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُواْ إِذَا قُمْتُمْ إِلَى الصَّلاةِ فاغْسِلُواْ وُجُوهَكُمْ وَأَيْدِيَكُمْ إِلَى الْمَرَافِقِ وَامْسَحُواْ بِرُؤُوسِكُمْ وَأَرْجُلَكُمْ إِلَى الْكَعْبَينِ**))[۷] .

" ای مؤمنانو ! کله چې تاسې د لمانځه له پاره پاڅيدئ؛(اوبې اودسه يئ) نو بايد چې خپل مخونه او لاسونه تر څنګلو پورې ووينځئ ، پر سرونو باندې لاسونه راکاږئ او پښې تر پنډيو پورې ووينځئ. "

رسول الله ﷺ فرمايلی دی: {**فُضِّلْنَا عَلَى النَّاسِ بِثَلَاثٍ : جُعِلَتْ صُفُوفُنَا كَصُفُوفِ الْمَلَائِكَةِ، وَجُعِلَتْ لَنَا الْأَرْضُ كُلُّهَا مَسْجِدًا، وَجُعِلَتْ تُرْبَتُهَا لَنَا طَهُورًا إِذَا لَمْ نَجِدِ الْمَاءَ**}[۸] "موږ ته تر نورو خلکو په دريو شيانو کښې فضيلت راکړ شوی دی، زموږ صفونه لکه د ملائکو په شان ګرځول شوي دي، ټوله مځکه موږ ته مسجد ګرځول شوې ده، او چې کله اوبه پيدا نکړو ټوله خاوره موږ ته د پاکۍ وسيله ګرځول شوې ده "

( **الصعيد الطيب وضوء المسلم و ان لم يجد الماء عشر سنين** ) " پاکه خاوره د مسلمان اودس دی ولو که تر لسو کالو پورې د اوداسه اوبه پيدا نه کړي".

**د تدريس تګ لاره:** شرحه کول، پوښتنه او ځواب، او تمثيل.

**مرستندويه درسي توکي:** کتاب، تخته، تباشير او نور.

---

[۷] - المائدة: ٦

[۸] - صحيح مسلم - (۲ / ٦٣)

**د لوست جریان:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکي فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | **سریزه:**<br>محترم ښوونکی له سلام او روغبړ، د حاضرۍ له اخستلو، د ټولګي د نظافت له ترتیب او کنترول څخه وروسته، کورنی کار ګوري.<br>محترم ښوونکی د مخکیني لوست په اړه پوښتنه کوي:<br>څوک کولای شي د اوداسه د فرضونو نوم واخلي؟<br>ایا اودس له فرضونو پرته نور احکام هم لري؟<br>محترم ښوونکی زده‌کوونکي نوي درس ته هڅوي:<br>پوهیږئ چې د اوداسه لپاره اوبه راخیستل لازمي دي، اوس کولای شئ ووایاست چې اوبه نه وي لمونځ کوونکی باید څه وکړي؟ | زده‌کوونکی د سلام ځواب ورکوي.<br>زده‌کوونکی ځواب ورکوي. |
| ۲۵ دقیقې | **ددرس وړاندې کول:**<br>۱- محترم ښوونکی د نوي درس سرلیك ( تیمم) پر تخته لیکي، بیا له زده‌کوونکو څخه غواړي چې درس په آرامي او چوپتیا سره ولولي، او هغه نکتې چې دوی ته مبهمې وي په یاد ولري، او په دې ترڅ کښې پخپله ښوونکی څنګلوري سرلیکونه پر تخته لیکي.<br>۲- وروسته بیا محترم ښوونکی د تیمم او د هغو حالاتو په هکله چې تیمم په کې روا کیږي معلومات ورکوي. او له زده‌کوونکو څخه غواړي چې زده کړي معلومات شرحه کړي.<br>۳- او که د زده‌کوونکو شمیر ډیر وي، محترم ښوونکی هغوی په دائروي شکل په څو ډلو ویشي او په خپله ددوی په منځ کې کیني، د تیمم طریقه په عملي ډول تمثیلوي. او بیا د تیمم شرطونه شرحه کوي، او له څو تنو زده‌کوونکو څخه غواړي چې تیمم وکړي.<br>۴- بیا محترم ښوونکی له زده‌کوونکو څخه د اوداسه د ماتوونکو په هکله پوښتنه کوي، او وروسته ښوونکی پخپله د تیمم د ماتوونکو په هکله معلومات وړاندې کوي.<br>۵- په دې پسې محترم ښوونکی په لنډ ډول د زده‌کوونکو ذهن د هغو اسانتیاو خواته اړوي چې دین یې په پام کښې لري، اود موزو د مسح په هکله معلومات ورکوي.او له هغه وروسته څو تنو زده‌کوونکو ته لارښوونه کوي چې په موزو باندې مسحه کول تمثیل کړي.<br>۶- په پای کښې د کتاب د لومړي فعالیت له اجرا کولو څخه وروسته، په پټی باندې د مسح کولو په هکله معلومات ورکوي، او د کتاب دویم فعالیت له لارښوونی سره سم اجرا کوي. | زده‌کوونکي په کراری او چوپتیا سره درس لولي.<br>زده‌کوونکي یې شرحه کوي.<br>زده‌کوونکي په دقت سره ګوري.<br>زده کوونکې یې اجرا کوي.<br>زده کوونکې یې اوري او تمثیلوي یې. |

| | او د لا ډاډ پیني لپاره د زده‌کوونکو ارزونه کوي: | |
|---|---|---|
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>۱- دتیمم لغوی او اصطلاحي معنا بیان کړئ.<br>۲- په موزو باندې د مسحې په هکله معلومات ورکړئ.<br>۳- په موزو د مسح حکم څه دی؟<br>۴- د مقیم او مسافر لپاره په موزو باندې د مسح موده څومره ده بیان یې کړئ؟<br>۵- کوم عذرونه دتیمم دروا کیدو سبب ګرځي؟<br>۶- د تیمم د شرطونو نومونه واخلئ. | زده‌کوونکي ځواب ورکوي. |
| ۵ دقیقې | **ددرس لنډیز:**<br>کله چې انسان عذر ولري کولای شي تیمم وکړي، او تاسو اته عذره زده کړل، او د تیمم دصحت لپاره هم پنځه شرطونه وو، او هر هغه شي چې اودس ماتوي تیمم هم ماتوي، او له دې څخه علاوه د ذکر شویو عذرونو لري کیدل هم تیمم ماتوي، او د دین له آسانتیاؤ څخه یو په موزو مسحه ده چې موده یې د مقیم لپاره یو شپه او ورځ او د مسافر لپاره درې ورځې او شپې دي. هر هغه شی چې په زخمي شوې یا ماتې شوې برخې کیښودل شي د پټۍ په نوم یادیږي چې مسح وربانديې روا ده، درې شرطونه لري، او په دوو حالتونو کښې مسحه ماتیږي. | زده‌کوونکي غوږ نیسي. |
| | **کورنی دنده:**<br>محترم ښوونکی کتاب ته په مراجعې سره زده‌کوونکو ته د لارښووني سره سم کورنی دنده ورکوي. | |

**پنځم لوست**:

**سر لیک:** لمونځ

**مخ:** ۳۰-۳۱

**وخت:** یو درسي ساعت (۴۵)

**موخې:** زده کوونکی باید:

**الف:** د لمانځه تعریف، دهغه دپرېښودلو حکم، د هغه وختونه، سره له هغو وختونو چې لمونځ په کې روا نه دی یا مکروه دی، زده کړي.

**ب:** د لمانځه کولو مهارت په سمه توګه تر لاسه کړي.

ج: د لمانځه د غوره والي او په هغه باندې د پابند کېدلو روحیه په کښې پیدا شي.

**اضافی معلومات:**

صلاة په عربي ژبې کښې دعاء ته وایي.الله تعالیﷻ فرمایی: ((وَصَلِّ عَلَيْهِمْۖ إِنَّ صَلَوٰتَكَ سَكَنٌ لَّهُمْ)) [9]

" او د هغو په حق کښې د رحمت دعا وکړه ځکه چې ستا دعا د هغو له پاره د ډاډینې وسیله ده ".

**د مشروعیت دلیل:** د لمانځه مشروعیت په ډېرو آیاتونو ثابت دی، د هغو لـه جملې څخه دا مبارک آیت دی: (( فَسُبْحَٰنَ ٱللَّهِ حِينَ تُمْسُونَ وَحِينَ تُصْبِحُونَ ﴿١٧﴾ وَلَهُ ٱلْحَمْدُ فِى ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ وَعَشِيًّا وَحِينَ تُظْهِرُونَ )) [10]. " نـو د الله تسبیح وکړئ کله چې تاسې ماښام کوئ او کله چې سهار کوئ. په اسمانونو او ځمکه کې د همغه لپاره ثنا ستاینه ده . او (د هغه تسبیح وکړئ ) مازیګر او کله چې پر تاسې د ماسپښین وخت راځي ".

ابن عباس رضی الله عنهما ویلی دي : له ( حین تمسون) څخه د ماښام او ماسـختن، او لـه (حین تصبحون ) څخه د سهار، او له (عشیا) څخه د عصر، او له ( حین تظهرون) څخه د ماسپښین لمونځونه مراد دی.

په بل ایت کښې راغلی دي: ((حَٰفِظُواْ عَلَى ٱلصَّلَوَٰتِ وَٱلصَّلَوٰةِ ٱلْوُسْطَىٰ وَقُومُواْ لِلَّهِ قَٰنِتِينَ ﴿٢٣٨﴾)) [11].

" د خپلو لمونځونو ساتنه وکړئ، په تېره بیا د مازدیګر د لمانځه او د الله په وړاندې داسې په ویره او ادب ودرېږئ، لکه چې فرمان منونکی غلام درېږي".

په بخاري او مسلم کښې ابن عباس رضی الله عنهما روایت کړی دی چې: نبي کریم ﷺ حضرت معاذ رضی الله عنه یمـن تـه لیږلو، ورته ویې فرمایـل : **{ادْعُهُمْ إِلَى شَهَادَةِ أَنْ لا إِلَهَ إِلا اللهُ وَأَنَّ مُحَمدا رسول الله، فإِنْ هُمْ أطَاعُوا لِذلِكَ، فَأَعْلِمْهُمْ أن اللهَ قَد افْتَرَضَ عَلَيْهِمْ خَمْسَ صَلَواتٍ فِي كُلِّ يَوْمٍ وَلَيْلَةٍ}**.

" هغوی دې ته دعوت کړه چې دا شاهدي ورکړي چې له الله څخه پرته بل بر حق معبود نه شـته او محمـد ﷺ د الله رسول دی، که هغوی ددې اطاعت وکړ نو؛ دا وروښـیه چـې الله تعـالیﷻ پـه یـوه شـپه او ورځ کښـې پنځـه وختـه لمونځونه فرض کړې دي ".

[9] – التوبة: ۱۰۳.

[10] – الروم: ۱۷ – ۱۸

۱۱ – البقرة: ۲۳۸

**لمونځ په دوه ډوله دی:**

۱- هغه لمونځ چې رکوع او سجده ولري.

۲- هغه لمونځ چې رکوع او سجده نه لري، چې هغه د جنازې لمونځ دی.

هغه لمونځ چې رکوع او سجده لري په درې ډوله دي:

۱- فرض: په یوه شپه او ورځ کښې پنځه وخته لمونځ دی.

۲- واجب: د وتر، د اخترونو، او هغه نفلی لمونځونه دي چې له پیل کولو څخه وروسته فاسد شوی وي، او له طواف څخه وروسته دوه رکعته لمونځ دی.

۳- نفل: له فرضو او واجبو پرته له نورو لمونځونوڅخه عبارت دی.

او دلمونځونو د وختونو په هکله په قرآن کریم کی راځي: ((إِنَّ ٱلصَّلَوٰةَ كَانَتْ عَلَى ٱلْمُؤْمِنِينَ كِتَٰبًا مَّوْقُوتًا ﴿١٠٣﴾)) [۱۲] " لمونځ په حقیقت کی یوداسې فرض دی چې د وخت له پابندئ سره پر مؤمنانو لازم کړای شویدی ".

**د لمانځه د فرضیت تاریخ:** احنافو ویلی دي چې لمونځ له هجرت څخه یو نیم کال مخکې د معراج په شپه فرض شوی دی .

**د لمانځه ممنوعه وختونه:** په دریو وختونو کښې لمونځ کول جواز نه لري چې هغه په درسي کتاب کښې د مکروهه وختونو تر سرلیک لاندې په ۵ شمیره کښې راغلي دي، او په ځینو وختونو کښې نفل لمونځ مکروه دی چې ځینې دهغو په درسي کتاب کښې د ۶ نمبر سر لیک لاندې لیکل شوي دي.

**د تدریس تګ لاره:** شرحه کول، پوښتنه او ځواب، او تمثیل.

**مرستندویه درسي توکي:** کتاب، تخته، تباشیر او نور.

**ددرس جریان:**

| وخت | د ښوونکی فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | **سریزه:**<br>محترم ښوونکی له سلام او روغبړ، د حاضري له اخیستلو، د ټولګي د نظافت له ترتیب او کنترول څخه وروسته، کورنی کار ګوري.<br>محترم ښوونکی د مخکینې درس ارزونه کوي:<br>څوک کولای شي چې تیمم تمثیل کړي؟<br>محترم ښوونکی زده‌کوونکي نوي درس ته هڅوي:<br>آیا پوهیږئ چې اودس او تیمم د لمانځه لپاره تیاری دی؟<br>او موږ نن خپل بحثونه د لمانځه په هکله پیل کوو. | زده‌کوونکي د سلام ځواب ورکوي.<br>زده‌کوونکي ځواب ورکوي. |
| ۲۵ دقیقې | **ددرس وړاندې کول:**<br>۱- محترم ښوونکی د نوي درس سرلیک « لمونځ» پر تخته لیکي، بیا له زده‌کوونکو څخه غواړي چې په ارامی او چوپتیا سره یو ځلې درس ولولي، او پخپله د څارنې تر څنګ کښې څنګلوري سرلیکونه پر تخته لیکي. | زده‌کوونکي په ارامي سره درس لولي. |

---

[۱۲] - النساء: ۱۰۳

| | | | |
|---|---|---|---|
| | ۲- وروسته له هغه محترم ښوونکی د لمانځه دمعنا او د ځینو فضایلو په هکله یو څه معلومات ورکوی. وروسته له څو تنو زده‌کوونکو څخه غواړي چې د لمانځه د فضائلو او وختونو په هکله یو څه بحث وکړي، وروسته د لمانځه وختونه د کتاب له مخې لولی او شرحه کوي یې.<br>۳- ور پسې له پنځو تنو کمزورو زده‌کوونکو څخه غواړي چې هر یو د لمانځه یو یو وخت شرحه کړي.<br>وروسته محترم ښوونکی هغه وختونه چې لمونځ کول په کښې جواز نه لري، او یا په کښې مکروه وي، شرحه کوي او یو څه په دې وختونو کښې د لمانځه د نه جواز په حکمونو رڼا اچوي.<br>۴- په پای کښې د کتاب د فعالیت له سرته رسولو څخه وروسته، د لا ډاډېینې لپاره د زده‌کوونکو ارزونه کوي. | زده‌کوونکي اوري او تمثیل کوي. |
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>۱- لمونځ تعریف کړئ.<br>۲- د لمانځه لس خصوصیات بیان کړئ.<br>۳- د لمانځه وختونه شرحه کړئ.<br>۴- د لمانځه مکروه وختونه په لنډ ډول بیان کړئ.<br>۵- په کوم وخت کې نفل کول مکروه دي؟ | زده‌کوونکي ځواب ورکوي. |
| ۵ دقیق | **ددرس لنډیز:**<br>لمونځ د اسلام ډیر مهم رکن، او ددین ستنه ده، او هره ورځ پنځه ځلې په خپلو وختونو کښې فرض دی، او هر څوک چې تري منکر شي هغه کافر دی، او که دسستی له امله یې اداء نه کړي فاسق ګڼل کیږي، او په دریو وختونو کښې لمونځ کول جواز نه لري، او په پنځو وختونو کښې د نفلو کول مکروه دي. | |
| | **کورنی دنده:**<br>محترم ښوونکی کتاب ته په کتنې سره زده‌کوونکو ته د لارښوونې سره سم کورنی دنده ورکوي. | |

**شپږم لوست**:

**سرليک:** اذان او اقامت

**مخ:** ۳۴-۳۷

**وقت:** يو درسي ساعت

**موخې:** زده‌کوونکي بايد:

**الف:** د اذان او اقامت تعريف، حکم، دهغو سنتونه او مکروهات زده کړي.

**ب:** د آذان کولو او د اقامت ويلو مهارت پيدا کړي.

**ج:** د لمانځه ارزښت، او پر هغه د پابندی روحيه په ځان کې ورو‌زي.

**اضافي معلومات:**

آذان له هجرت څخه وروسته رامنځ ته شو او د اسلام له ډيرو مهمو شعائرو څخه دی، او دهغه له لارې پنځه ځلې د الله ﷻ د وحدانيت او د رسول کريم ﷺ د رسالت غږ دخلکو غوږونو ته رسيږي، او د لمانځه د وخت د داخليدلو اعلان کيږي، او په دې توګه مسلمانانو ته بلنه ورکول کيږي چې په لمانځه او جماعت کښې ګډون وکړي، او د پروردګار په حضور کښې ودريږي.

**د مشروعيت دليل:** د اذان او اقامت مشروعيت په قران کريم او سنت نبوی باندې ثابت دی، الله تعالیﷻ فرمايي: (( إِذَا نُودِىَ لِلصَّلَوٰةِ مِن يَوْمِ ٱلْجُمُعَةِ فَٱسْعَوْاْ إِلَىٰ ذِكْرِ ٱللَّهِ وَذَرُواْ ٱلْبَيْعَ ۚ ذَٰلِكُمْ خَيْرٌ لَّكُمْ إِن كُنتُمْ تَعْلَمُونَ ))[13] " ای مومنانو ! کله چې دجمعې په ورځې دلمانځه لپاره نداء (اذان) وشي نو دالله د ذکر(لمانځه) خواته بيړه او پيرل پلورل پريږدئ داستاسې له پاره ډيره غوره ده که تاسې پوهيږئ ".

او رسول الله ﷺ فرمايلي دي: {**إِذَا حَضَرَتِ الصَّلَاةُ فَلْيُؤَذِّنْ لَكُمْ أَحَدُكُمْ و لِيَؤُمَّكُمْ أَكْبَرُكُمْ**}، ″ کله چې د لمانځه وخت راشي نو يو له تاسو دې اذان وکړي، او په تاسو کښې دې تر ټولو مشر ستاسو امامت وکړي″.

**د اذان او اقامت حکم:**

د فرض لمونځونو لپاره اذان کول په نارينه و باندې سنت مؤکد دی. او د فرض لمونځونو لپاره اقامت ويل هم د مقيم او هم د مسافر لپاره سنت مؤکد دی.

د اذان اجابت کول سنت دی، د اذان اوريدونکی هم د مؤذن وينا تکراروي او د ( **حی علی الصلاة** او **حی علی الفلاح**) په اوريدو سره اوريدونکی وايي: ( **لا حول و لا قوة الا بالله**)، او دسهار په وخت چې مؤذن ووايي: ( **الصلاة خير من النوم**) نو اوريدونکی وايي: (**ماشاء الله کان**).

**د تدريس تګ لاره:** شرحه کول، پوښتنه او ځواب،او تمثيل.

**مرستندويه درسي توکي:** کتاب، تخته، تباشير او نور.

[13] - **الجمعة: ۹**

**د لوست جریان:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | **سریزه:**<br>محترم ښوونکی له سلام او روغبړ، د حاضري له اخیستلو، د ټولګي د نظافت له ترتیب او کنترول څخه وروسته، کورنی کار د وخت ظرفیت ته په کتو سره ګوري.<br>محترم ښوونکی د مخکینې درس ارزونه کوي:<br>د اذان لغوی معنی څه ده؟<br>اذان او اقامت څو سنته لري؟<br>محترم ښوونکی زده‌کوونکي نوي درس ته هڅوي:<br>هر لمونځ یو ټاکلی وخت لري، ایا پوهیږئ د وخت د پیژندلو لپاره ډیره اسانه لاره کومه ده؟ | زده‌کوونکي د سلام ځواب ورکوي.<br>زده‌کوونکي ځواب ورکوي. |
| ۲۵ دقیقې | **ددرس وړاندې کول:**<br>۱- محترم ښوونکی د نوي درس سرلیک (اذان او اقامت ) پر تخته لیکي، له هغه وروسته له زده‌کوونکو څخه غواړي چې په ارامه توګه یو ځلې درس ولولي.<br>۲- وروسته ښوونکی کولای شي د اذان د حکمت په هکله معلومات ورکړي. او بیا د اذان حکم، ځینې شرطونه، او اقامت شرحه کړي، او یو ځلې د آذان کلمې په سم ډول او لوړ غږ سره ووایي.<br>۳- ښوونکی دې زده‌کوونکی په څو وړو ډلو ویشي او په هره ډله کښې دې یو له زده‌کوونکو چې د آذان کلمې یې ښې زده وی له نورو زده‌کوونکو څخه اذان واوری او د هغوی تیر وتنې دې اصلاح کړي، او محترم ښوونکی یې څارنه کوي.<br>۴- له دې وروسته محترم ښوونکی د کتاب لومړی فعالیت د لارښوونې سره سم اجرا کوي.او ورپسې محترم ښوونکی د اذان او اقامت سنتونه، مکروهات، او د اقامت حکم توضیح کوي.وروسته د کتاب دویم فعالیت د لارښوونې سره سم سر ته رسوي او په پای کښې د لا ډاډ پینې لپاره د زده کونکو ارزونه کوي. | زده‌کوونکي په کراری او چوپتیا سره درس لولي.<br>زده‌کوونکي غوږ نیسی.<br>زده‌کوونکي یې اجرا کوي.<br>زده‌کوونکي یې اجرا کوي. |
|  | **ارزونه:**<br>اذان او اقامت تعریف کړئ.<br>د اذان او اقامت حکم او شرطونه بیان کړئ.<br>د اذان مکروهات بیان کړئ. | زده‌کوونکي ځواب ورکوي. |

| ۵ دقیقې | **ددرس لنډیز:**<br>په لغت کښې اذان د اعلان په معنا، او د پنځه وخته لمونځونـو او د جمعې د لمانځه لپاره سنت مؤکد دی، په اذان او اقامت کې پنځه شیان باید په نظر کـې ونیـول شـي، او تاسـو د اذان او اقامـت اووه سنتونه او اووه مکروهات زده کړل. د اقامت الفاظ هم عینـا د اذان د الفاظو په شان دي البته د حی علـی الفـلاح څخـه وروسـته د قـد قامت الصلاة الفاظ دوه ځله تکراریږي، او د ټولو فرضـی او فـوتي لمونځونو لپاره سنت دی. | زده کوونکي غوږ نیسی. |
| --- | --- | --- |
| | **کورنی دنده:**<br>محترم ښوونکی کتاب ته په کتنې سره زده‌کوونکو ته د لارښوونې سره سم کورنی دنده ورکوي. | |

## **اووم لوست**:

**سرليک:** د لمانځه شرطونه

وخت: يو درسي ساعت( ۴۵ دقيقې)

**موخې:** زده‌کوونکي بايد:

الف: د لمانځه له شرطونو سره اشنا شي.

ب: د لمانځه د شرطونو او رکنونو د عملی کولو مهارت پيدا کړي.

ج: د لمانځه د ارزښت او په هغه د پابندی کولو روحيه او ذهنيت پيدا کړي.

**اضافي معلومات:**

د شرط تعريف:

لکه چې پوهيږئ له لمانځه څخه مخکې څه کارونه سرته رسول کيږي چې په لمانځه کې داخل نه دي، خو د لمانځه د صحت لپاره لازمي دي داپه دې معنا چې که يو له هغو سرته ونه رسيږي لمونځ صحت نه پيدا کوي، دې عملونو ته د لمانځه شرطونه ويل کيږی.

**يادونه:**

محترم ښوونکی بايد دې ته پاملرنه ولري چې ستاسو په درسي کتاب کې د لمانځه شرطونه اووه، او د احنافو په ځينې کتابونو کې شپږ ښودل شوې دي، او ځينې علماء کرامو بيا د لمانځه شرطونه چې له لمانځه څخه بهر دي او د لمانځه ارکان چې په لمانځه کې داخل دي په يوه بحث کې د لمانځه د فرضونو تر سر ليک لاندې ذکر کړي دي، او د ذهني اختلاف او پراګندګي څخه يې مخنيوی کړی دی.

او داچې د لمانځه شرطونه اووه دي که شپږ بايد ووايو چې : ځينی مؤلفينو د ځان، جامو او ځای پاکوالی په جلا توګه ذکر کړي دي او تحريمه تکبير يې د لمانځه له شرطونو څخه نه بلکه د لمانځه له رکنونو څخه شميرلی دی( لکه ستاسو د درسي کتاب په شان)، او ځينې علماؤ کرامو د طهارت ډولونه تر يوې شميرې لاندې ذکر کړې او تحريمه تکبير يې هم د لمانځه له شرطونو څخه شميرلی دی. نو غوره ده چې محترم ښوونکی (که يې ورته اړه ليدله) په دې برخه کې رڼا واچوي او زده‌کوونکی له ذهني سرګردانی څخه وژغوري.

**مسئله:** د لمانځه د ځای په پاکوالې کې دا لازمه ده چې د ددو پښو، دوو لاسونو، دوو زنګنونو او د تنډې د لګولو ځای يې پاک وي.

**مسئله:** عورت بايد لمانځه ته له داخليدلو څخه تر فارغيدلو پورې پټ وي، نو که يوه څلورمه چې پټول يې شرط دي د يوه رکن د اداء کولو د مودې په اندازه لوڅه پاتي شي، لمونځ باطليږي.

**مسئله:** که يو څوک د ناروغۍ او يا د دښمن د ويري له امله قبلې ته مخ نه شي اړولای، هغه کولای شی هر لورې ته چې قدرت لري لمونځ اداء کړي.

**ارکان:** د رکن جمع ده، او رکن هغه دی چې په حقيقت د يوه شي کې داخل وي، او دهغه لازم والی په قطعي دليل سره ثابت وي.

**د تدريس تګ لاره:** شرحه کول، پوښتنه او ځواب، او تمثيل.

**مرستندويه درسي توکي:** کتاب، تخته، تباشير او نور.

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه |
| --- | --- | --- |
| ۵ دقیقې | **سریزه:**<br>محترم ښوونکی له سلام او روغبړ، د حاضري له اخیستلو، د ټولګي د نظافت له ترتیب او کنترول څخه وروسته، کورنی کار ګوري.<br>محترم ښوونکی د پخواني درس ارزونه کوي:<br>د لمانځه لغوي او اصطلاحي معنا څه ده؟<br>د لمانځه وختونه دې په لنډ ډول له څو تنو زده‌کوونکو څخه وپوښتل شي.<br>محترم ښوونکی زده‌کوونکي نوي درس ته هڅوي:<br>اوس چې د لمانځه د وخت په داخلیدلو باندې د خلکو دخبریدو په طریقه، او د هغه په شرطونو پوه شوئ، ایا پوهیږئ چې د لمانځه شرطونه څو دي؟ | زده‌کوونکي د سلام ځواب ورکوي.<br><br>زده‌کوونکي ځواب ورکوي. |
| ۲۵ دقیقې | **ددرس وړاندې کول:**<br>۱- محترم ښوونکی د نوی درس سرلیك (د لمانځه شرطونه)پر تخته لیکي، او له زده‌کوونکوڅخه غواړي چې درس په ارامی او چوپتیا سره ولولي.<br>۲- وروسته محترم ښوونکی له څو تنو زده‌کوونکو څخه پوښتنه کوي چې څنګه په لمانځه پیل کوي؟ کله چې زده‌کوونکي د خپل علم او پوهې سره سم ځواب ورکړي، ښوونکی کولای شي د بدن، جامې او د لمانځه د ځای د پاکوالي په هکله معلومات ورکړي، او له زده‌کوونکو څخه پوښتنه وکړي چې آیا دغه شیان پاك دي که نه؟ او همداسې له یو، یو څخه د شرطونو پوښتنه وکړی، او په پای کې پخپله کتاب تشریح کړي، شرطونه او رکنونه هم تشریح کړي.<br>۳- په پای کې د کتاب فعالیت د لارښوونې سره سم سرته رسوي، او د لا ډاډېینې لپاره د زده‌کوونکو ارزونه کوي. | زده‌کوونکي په کرارۍ او چوپتیا سره درس لولي.<br><br>زده‌کوونکي ځواب ورکوي.<br><br>زده‌کوونکي یې اجرا کوي. |
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>۱- د لمانځه شرطونه څو دي؟<br>۲- لمونځ څو رکنه لري؟<br>۳- که یو څوك د لمانځه له شرطونو څخه یو شرط پریږدي، حکم یې څه دی؟ | زده‌کوونکي دې دښوونکي سوالونوته ځوابونه ووایاست. |

| | | |
|---|---|---|
| ۵ ذقیقې | **ددرس لنډیز:**<br>لمونځ اووه شرطونه لري، او تاسو د نارینه او ښځینه د عورت له اندازې سره اشنا شوئ، او دا مو هم زده کړل چې د قبلې په هکله مشکوک کیدل څه حکم لري؟، او لمونځ شپږ رکنه لري او که یو څوك په قصد او یا په هیره سره له ارکانو څخه کوم رکن پریږدي، لمونځ یې صحت نه پیدا کوي. | |
| | **کورنی دنده:**<br>محترم ښوونکی کتاب ته په مراجعې سره زده‌کوونکو ته له لارښوونې سره سم کورنی دنده ورکوي. | |

**اتم لوست:**

**سرليک:** د لمانځه واجبات او سنتونه.

**موخې :** زده‌کوونکي باید:

**الف:** د لمانځه د واجباتو، دهغود پرېښودلو حکم، او د لمانځه د سنتونو زده کول.

**ب:** په هغو د مهارت پيدا کول.

**ج:** په سنتو باندې د ټينګ درېدلو روحيه په کې پيدا شي.

**اضافي معلومات:**

**د واجب تعريف:** واجب هغه شرعي حکم دی چې ثبوت يې په داسې دليل سره شوی وي چې شک او شبهه په کې وي. يعنې دهغه ددليل ثبوت ظنی(شکي) وي، لکه خبر آحاد او يا ظنی الدلالة وي، د مثال په ډول يو لفظ دوه يا تر هغو زياتې معناګانې ولري. له دې امله واجب له فرضو څخه په ټيټه او له سنتو څخه په لوړه مرتبه کې دی. امکان لري زده‌کوونکي دا پوښتنه وکړي چې ولې د واجباتو شمير په مختلفو کتابونو کې توپير لري؟ په درسي کتابونو کې لومړی موضوعات په مختصر ډول راوړل کيږي، دويم ځل ځينې فقهاء د جزئياتو په راوړلو سره نورې خبرې استنباطوي او په تفصيلي توګه له هغو څخه بحث کوي،خو د مکاتبو په درسي کتابونو کې په کلياتو بسنه شوې ده.

**د سنتو اهميت:**

(( قُلۡ إِن كُنتُمۡ تُحِبُّونَ ٱللَّهَ فَٱتَّبِعُونِي يُحۡبِبۡكُمُ ٱللَّهُ وَيَغۡفِرۡ لَكُمۡ ذُنُوبَكُمۡ ))[١٤]

"ای پيغمبره، خلکو ته ووايه چې که تاسې په رښتيا له الله سره مينه لرئ نو زما د پيروی لاره غوره کړئ، الله به له تاسې سره مينه وکړي او ستاسې خطاګانی به دروبښي "

لکه څرنګه چې وويل شول د سنتو درجه د واجبو تر درجې ټيټه ده، خو دا سنتو ته د لږې پاملرنې په معنا نه ده، بلکه دا د دين د آسانۍ ښکارندويي کوي. که سنت هم فرض وای نو موږ به هره ورځ د سنتو د پرېښودلو له امله په ډېرو ګناهونو اخته کيدلو.

**د تدريس تګ لاره:** شرحه کول، پوښتنه او ځواب، او تمثيل.

**مرستندويه درسي توکي:** کتاب، تخته، تباشير او نور.

---

[١٤] - آل عمران: ٣١

**د لوست جريان:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | **سریزه:**<br>محترم ښوونکی له سلام او روغبړ، د حاضري له اخیستلو، د ټولګي د نظافت له ترتیب او کنترول څخه وروسته، کورنی کار ګوري.<br>محترم ښوونکی د پخواني درس ارزونه کوي:<br>لمونځ څو شرطونه لري؟<br>د لمانځه د رکنونو نومونه واخلئ؟<br>محترم ښوونکی زده‌کوونکي نوي درس ته هڅوي: ایا پوهیږئ چې په لمانځه کې مختلف عملونه تر سره کیږي او د هر یوه حکم له بل سره توپیر لري؟<br>تاسو تر اوسه له هغو څخه دوه ډوله چې يو يې شرطونه او بل يې رکنونه دي زده کړل، او اوس به د لمانځه له واجباتو او سنتونو سره اشنا شئ. | زده‌کوونکي د سلام ځواب ورکوي.<br><br><br><br><br>زده‌کوونکي ځواب ورکوي. |
| ۲۵ دقیقې | **ددرس وړاندې کول:**<br>۱- محترم ښوونکی د نوي درس سرلیک ( د لمانځه واجبات او سنتونه) پر تخته لیکي، او له زده‌کوونکو څخه غواړي چې په کراري او چوپتیا سره درس ولولي.<br><br>۲- له هغه وروسته محترم ښوونکی د لمانځه واجبات په ښه توګه شرحه کوي، په داسې ډول چې زده‌کوونکي د ارکانو او واجباتو توپیر او د هر يوه حکم په ښه توګه درك کړای شي.<br><br>۳- د اړتیا په صورت کې کولای شي چې زده‌کوونکي په مختلفو ډلو وویشي او د لایقو زده‌کوونکو په مرسته له هغو څخه وغواړي چې د لمانځه واجبات تمثیل کړي.<br><br>۴- له هغه وروسته د لمانځه د سنتو په تشریح پیل کوي، او له څو تنو زده‌کوونکو څخه غواړي چې له سنتو څخه يو څو په ګوته کړي.<br>۵- په پای کې د کتاب فعالیت د لارښوونې سره سم سرته رسوي، او د لا ډاډېينې لپاره د زده‌کوونکو ارزونه کوي. | <br><br><br><br><br>يو زده‌کوونکي يې لولي او نورو ورته غوږ نیسي.<br><br>زده‌کوونکي ځواب ورکوي. |
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>۱- د لمانځه له واجباتو څخه د کوم يوه پريښودل څه حکم لري؟<br>۲- لمونځ څو سنتونه لري؟ له هغو څخه پنځه بیان کړئ. | زده‌کوونکي ځواب ورکوي. |

| | | |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | **ددرس لنډيز:**<br>په لمانځه کې مختلف عملونه ترسره کیږي چې ځینې له هغو څخه واجب او ځینې له هغو څخه سنت دي، تاسو د لمانځه یوولس واجبه او دوه ویشت سنتونه زده کړل، که یو څوک له واجبو څخه یو واجب په قصد سره پريږدي لمونځ به له سره راګرځوي، او که يې سهوا پريږدي په هغه د سهوې سجده لازميږي، تاسو به په راتلونکو درسونو کې دسهوې سجده ولولئ. | زده کوونکي غوږ نیسي. |
| | **کورنۍ دنده:**<br>محترم ښوونکی، کتاب ته په مراجعې سره، زده کوونکو ته د لارښووني سره سم کورنۍ دنده ورکوي. | |

**نهم لوست**:

**سرليک:** د لمانځه د کولو طريقه

**مخ:** ۴۴-۴۷

**وخت:** يو درسي ساعت(۴۵ دقيقې)

**موخې:** زده‌کوونکي بايد:

**الف:** د لمانځه کولو طريقه په ښه ډول زده کړي او د جماعت د لمانځه له ځانګړتياو سره اشنا شي، او د نارينه او ښځې د لمانځه توپيرونه وپيژني.

**ب:** د هغه د اداء کولو مهارت پيدا کړي.

**ج:** په خپله ځانونو کې د پابندۍ او د لمانځه د سم اداء کولو روحيه پيدا کړي.

**اضافي معلومات:**

لاندې اعمال د لمانځه له مستحباتو څخه دي:

۱- د نارينه و لپاره غوره ده چې د تحريمه تکبير په وخت کې خپل لاسونه له لستوڼو څخه بهر راوباسي.

۲- لمونځ کوونکی دې د ولاړې په حال کې د خپلې سجدې ځای ته ګوری.

۳- د رکوع په حال کې دې خپلو پښو ته ګوري.

۴- د سجدې په حال کې دې د پوزې نرميو ته ګوري.

۵- د ناستې په حال کې دې خپلې سينې ته ګوري.

۶- د سلام ګرځولو په وخت کښې دې خپلو اوږو ته ګوري.

۷- د وس په اندازه دې د پرنجي او ايرګمي مخه ونيسي.

۸- کله چې ايرمي کولو ته مجبور شي نو خپله خوله دې د لاس په چپه خوا بنده ساتي.

دغه اعمال د لمانځه له آدابو څخه دي، آداب د ادب جمع ده، او ادب هغه کار دی چې پيغمبر ﷺ هغه تر سره کړې وي خو مواظبت يې ورباندې نه وي کړی، ددغو کارونو کول غوره دي خو نه کول يې ملامتي او ترټنه تر شا نه لري.

**د تدريس تګ لاره:** شرحه کول، پوښتنه او ځواب، او تمثيل.

**مرستندويه درسي توکي:** کتاب، تخته، تباشير او نور.

**د لوست بهر:**

| وخت | د ښوونکي فعاليتونه | د زده‌کوونکو فعاليتونه |
|---|---|---|
| | **سريزه:**<br>محترم ښوونکی له سلام او روغبړ، د حاضري له اخيستلو، د ټولګي د نظافت له ترتيب او کنترول څخه وروسته، کورنی کار ګوري.<br>محترم ښوونکی د پخواني درس ارزونه کوي:<br>څوک کولای شي له واجباتو څخه د پنځو واجبو نومونه واخلي؟<br>لمونځ څو سنتونه لري؟<br>محترم ښوونکی زده‌کوونکي نوې درس ته هڅوي:<br>اوس چې په نظري ډول په هغو ډول ډول عملونو باندې چې په لمانځه کې | زده‌کوونکي د سلام ځواب ورکوي. |

| | | |
|---|---|---|
| | تر سره کيږي پوه شوئ، آيا کولای شئ هغه عملی کړي او د لمانځه د کولو طريقه وښاياست؟ | |
| ۲۵ دقيقې | **ددرس وړاندې کول:**<br>۱- محترم ښوونکی د نوې درس سرليک ( د لمانځه د اداء کولو طريقـه) پـر تخته ليکي، او له زده‌کوونکو څخه غواړي چې په ارامۍ او چوپتيا سره درس ولولي.<br><br>۲- له دې څخه وروسته ښوونکی د لمانځه اداء کولو طريقه له کتـاب څخـه لولي او عملاً يې زده‌کوونکو ته ورښيي، او له کمـزورو زده‌کوونکـو څخـه غواړي چې ثنا(سبحانک اللهم) ووايی.<br>همدا شان د شـميرې سـره سـم ددرس د مـادو شـرحې تـه دوام ورکـوي، او رکوع، سجدې،او د ارکانو تعديل په عملي توګه ورښـيي، او د ( التحيـات او درود شريف) دعا ګانې په صفا ډول لولي، او له څو زده‌کوونکـو څخـه هـم پوښتنه کوي او د هغوی تير وتنې اصلاح کوي.<br><br>۳- ور پسې د نارينه او ښځې د لمانځه توپير په ګوته کوي، او له دې څخـه وروسته د کتاب فعاليت د لارښوونې سره سم سرته رسوي.<br>د لا ډاډ پيني لپاره د زده‌کوونکو ارزونه کوي. | زده کوونکې يې لولي.<br><br>زده‌کـــوونکي ځـــواب ورکوي. |
| ۱۰ دقيقې | **ارزونه:**<br>۱- ثنا د کومې دعاء نوم دی او له هغه وروسته څه ويل کيږي؟<br>۲- له (و لا الضالين) څخه وروسته کومه کلمه ويل کيږي؟<br>۳- د نارينه او ښځې لمونځ څه توپير لري؟ | زده‌کـــوونکي ځـــواب ورکوي. |
| ۵ دقيقې | **د درس لنډيز:**<br>تاسو د لمانځه له طريقې سره اشنا شوئ، او ثنا، فاتحه، التحيـات، او درود مـو زده کړل، او د نارينه او ښځې د لمانځه په توپير هم پوه شوئ. | زده‌کوونکي غوږ نيسي. |
| | **کورنۍ دنده:**<br>محترم ښوونکی، کتاب ته په مراجعې سره، زده‌کوونکو ته د لارښوونې سـره سم کورنی دنده ورکوي. | |

**لسم لوست**:

**سرليك:** د وتر او سنت لمونځ

مخ: ۴۸-۴۹

**وخت:** يو درسي ساعت(۴۵) دقيقې

**موخې:** زده‌کوونکي بايد:

الف: د وتر د لمانځه حکم، دهغه وخت، د قنوت له دعاء سره زده کړي، د مؤکد سنتونو او غير مؤکد سنتونوتعريف وپيژني، او د هغو له وخت او رکعتونو سره اشنا شي.

ب: د وتر او سنت لمونځونو کولو مهارت پيدا کړی، او د قنوت دعاء په يادو زده کړي.

ج: په پابندۍ سره د سنت لمونځونو د کولو روحيه پيدا کړي.

**اضافي معلومات:**

وتر طاق ته وايي، او ددې لپاره چې د وتر لمونځ هم طاق (درې رکعته) دی، په وتر سره ونومول شو.

رسول کريم ﷺ فرمايلي دي:( **الْوِتْرُ حَقٌّ ، فَمَنْ لَمْ يُوتِرْ فَلَيْسَ مِنَّا**) "وتر واجب دي، څوک چې وتر ونه کړي هغه له موږ څخه نه دی".

که څوک وتر په هيره يا په قصد سره پريږدي، د هغو قضايي واجبيږي.

که وروسته له دې چې لومړي دوه رکعته يې وکړل کښيني او تشهد ووايي، او هر کله چې دريم رکعت ته ولاړ شي ثنا او تعوذ(سبحانک اللهم، اعوذ بالله) نه وايي او کله چې د سورت له ويلو څخه فارغ شي، دا واجب ده چې خپل لاسونه د غوږونو تر نرميو پورې پورته کړي او لکه د لمانځه د پيل په شان دې تکبير ووايي، او له هغه وروسته او مخکې له رکوع دې د ولاړې په حال کې د قنوت دعاء ولولي.

قنوت دعاء، د الله ﷻ ستاينې او په لمانځه کې دريدلو ته وايي چې دلته وروستنی معنا مراد ده، څوک چې د قنوت دعاء ونه شي لوستلای، هغه کولای شي، دغه دعاء ولولي: **{رَبَّنَا آتِنَا فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً وَفِي الآخِرَةِ حَسَنَةً وَقِنَا عَذَابَ النَّارِ}** او يا دې درې ځلې (رب اغفر لي) ووايي، او يا دې درې ځلې(يا رب) ووايي.

او که د قنوت دعاء يې هيره شي او په رکوع کې ورياده شي، نو د رکوع په حال کې به قنوت نه وايی او نه به بيرته دقنوت ويلو لپاره قيام ته ورګرځي، بلکه له سلام ګرځولو څخه وروسته به د سهوې سجده کوي، ځکه واجب يې په هيره پرې ايښې دی.

همد اشان که يې له رکوع څخه په راپورته کيدلو کې ورپه ياد شي، قنوت به نه وايي بلکه له سلام ګرځولو څخه وروسته به د سهوې سجده کوي.

د وتر لمونځ د رمضان په مياشت کې په جماعت سره اداء کيږي، او له رمضانه پرته يې په جماعت اداء کول مکروه دي.

**د تدريس تګ لاره:** شرحه کول، پوښتنه او ځواب، او تمثيل.

**مرستندويه درسي توکي:** کتاب، تخته، تباشير او نور.

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | **سریزه:**<br>محترم ښوونکی له سلام او روغبړ، د حاضري له اخستلو، د ټولګي د نظافت له ترتیب او کنترول څخه وروسته، د وخت د ظرفیت او خپلې تګ لارې سره سم کورنی کار ګوري.<br>محترم ښوونکی د پخواني درس ارزونه کوي:<br>ایا تاسو د لمانځه د اداء کولو طریقه زده‌کړه؟<br>څوك کولای شي چې التحیات ووایي؟<br>محترم ښوونکی زده‌کوونکي نوي درس ته هڅوي:<br>تاسو تر اوسه د هغو عملونو له حکم سره اشنا شوئ چې په لمانځه کې تر سره کیږي، اوس په دې هم باید پوه شئ چې ټول هغه لمونځونه چې موږ يې کوو فرض نه دي، بلکه له فرضو څخه سربیره، واجب، او سنت لمونځونه هم شته، تاسو پوهیږي چې هغه کوم دي؟ | زده‌کوونکی سلام ته ځواب ورکوي.<br><br><br><br><br><br>زده‌کوونکی ځواب ورکوي. |
| | **د درس وړاندې کول:**<br>۱- محترم ښوونکی د نوي درس سرلیك ( د وتر او سنت لمونځونه) د تختې په سرلیکي، له زده‌کوونکو څخه غواړي چې درس په کراری او چوپتیا سره ولولي.<br>۲- له هغه وروسته محترم ښوونکی د زده‌کوونکو پام د سرلیکونو خواته اړوي، او دقنوت دعاء په واضح ډول سره لولي او له زده‌کوونکو څخه غواړي چې هغه تکرار کړي.<br>۳- له هغه وروسته زده‌کوونکي په څو ډلو ویشي او په هره ډله کې له یوه زده‌کوونکي څخه چې د قنوت دعاء يې سمه زده وي غواړي چې له نورو څخه يې واوری او د هغو تیر وتنې اصلاح کړي، او پخپله په نورو څارنه وکړي او ستونزې يې ورحل کړي. او له زده‌کوونکو څخه وغواړي چې د قنوت دعاء زده کړي.<br>۴- وروسته د درس شرحې ته دوام ورکوي، او د زده‌کوونکو پام د پنځه وخته لمونځونو خواته را اړوي، چې څو رکعته يې فرض او څو يې سنت دي؟<br>۵- ور پسې له دریو زده‌کوونکو څخه غواړي چې په ترتیب سره د وترو، مؤکدو او غیر مؤکد سنتو په هکله معلومات وړاندې کړي.<br>په پای کې د لا ډاډ پینې لپاره د زده‌کوونکو ارزونه کوي. | زده کوونکې يې لولي.<br><br><br><br><br><br><br>زده‌کوونکی په ډله ایزه توګه فعالیت کوي.<br><br><br><br><br><br><br>زده‌کوونکی معلومات ورکوي. |

| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>۱– د وتر لمانځه حکم څه دی؟<br>۲– د وتر لمونځ کله اداء کیږي؟<br>۳– د قنوت دعاء ولولئ.<br>۴– مؤکد سنتونه کوم دي؟<br>۵– د غیر مؤکدو سنتو په هکله معلومات ورکړئ. | زده‌کوونکی ځواب ورکوي. |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | **ددرس لنډیز:**<br>د امام ابو حنیفه رحمه الله په وړاندې د وتر لمونځ واجب، او درې رکعته دی، او د ماسختن له لمانځه څخه وروسته اداء کیږي او سنت لمونځونه هم دوه ډوله دي : ۱– مؤکد.۲–غیر مؤکد. | زده‌کوونکی غوږ نیسي. |
| | **کورنی دنده:**<br>محترم ښوونکی ددرسي کتاب د لارښوونې سره سم زده کوونکې ته کورنی دنده ورکوي. | |

## يوولسم لوست:

**سرليک:** تراويح، او قضايي لمونځونه

**مخ:** ۵۰-۵۱

**موخې:** زده‌کوونکي بايد:

**الف:** د تراويحو د لمانځه حکم او د رکعتونو شمير زده کړي، اود قضايي لمونځونو د اداء کولو له کيفيت سره اشنا شي، او په دې وپوهيږی چې د ترتيب خاوند څوک دی او ترتيب کله ساقطيږي؟

**ب:** د تراويحو او قضايي لمونځونو د ادا کولومهارت پيدا کړي.

**اضافي معلومات:**

د تراويح لمونځ يواځې د رمضان المبارک په مياشت کې اداء کيږي، او تراويح ځکه ورته وايي چې صحابه کرامو به د څلورو رکعتونو له اداء کولو څخه وروسته يو څه استراحت کاوه، چې دغه استراحت ته ترويحه وايي.

پيغمبر اکرم ﷺ فرمايلي دي: **{مَنْ قَامَ رَمَضَانَ إِيمَانًا وَاحْتِسَابًا غُفِرَ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ}**، "څوک چې د رمضان مياشت د ايمان او د ثواب ګټلو په ژوندی وساتي، تيرې ګناوې به يې وبښل شي"

په تراويحو کې يو ځل د ټول قرآن لوستل سنت دي، او د قوم سستي او تنبلي بايد د هغه د پريښودلو سبب نه شي، او درود، ثنا او د رکوع او سجدې تسبيحات هم بايد د تنبلۍ له امله پاتې نه شي.

**د فوت شويو لمونځونو قضايي:**

**د قضاء تعريف:** قضاء د فرضواو واجبولمونځونو اداء کولو ته د وخت له وتلو وروسته ويل کيږي، او د فرض لمونځ قضا راوړل فرض، او د واجبو قضا راوړل واجب دي. او له قضايي سره، استغفار هم لازم دی، ځکه قضا د فوت شوی د جبران، او استغفار د ناوخته کولو د ګناه ددفعې لپاره دی، خو چې مکلف معذور نه وي.

د لمانځه اداء کول په خپل وخت کې فرض دي، او دهغه ناوخته کول بې له کوم عذره جواز نه لري، او که چا د عذر له امله نا وخته کړ نو د عذر د ليرې کيدلو سره سم يې قضا راوړل لازم دي.

**د تدريس تګ لاره:** شرحه کول، پوښتنه او ځواب، او تمثيل.

**مرستندويه درسي توکي:** کتاب، تخته، تباشير او نور.

**د لوست جريان:**

| وخت | د ښوونکي فعاليتونه | د زده‌کوونکي فعاليتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقيقې | **سريزه:**<br>محترم ښوونکی له سلام او روغبړ، د حاضرئ له اخيستلو، د ټولګي د نظافت له ترتيب او کنترول څخه وروسته، کورنی کار ګوري.<br>محترم ښوونکی د پخواني درس داسې ارزونه کوي:<br>ايا ويلای شئ چې د وتر لمونځ څه حکم، او څو رکعتونه لري؟<br>مؤکد سنتونه څو رکعته دي؟<br>محترم ښوونکی زده‌کوونکي نوې درس ته هڅوي:<br>تاسو چې سنت لمونځونه تر اوسه کړي دي، هغه ټول کال اداء کيږي، او داسې لمونځونه هم شته چې په ټول کال کې يو ځل اداء کيږي چې نوم يې | زده‌کوونکی سلام ته ځواب ورکوي.<br><br>زده‌کوونکی ځواب ورکوي. |

| وخت | د درس مرحلې | د زده‌کوونکو فعاليت |
|---|---|---|
| | ( د تراويځ لمونځ ) دی.<br>او امکان لري يو څوک د کوم عذر له امله ونه شي کړای خپل فرض لمونځونه په خپل وخت کې اداء کړي، دا شخص څه بايد وکړي؟ نو تاسو په دې درس کې له دغو احکامو سره اشنا کيږئ. | |
| ۲۵ دقيقې | **ددرس وړاندې کول:**<br>۱- محترم ښوونکی د نوي درس سرليک (د تراويح او قضايي لمونځونه) پر تخته ليکي، له زده‌کوونکو څخه غواړي چې يو ځل درس په ارامې او چوپتيا سره ولولي .<br><br>۲- له هغه وروسته محترم ښوونکی د تراويحو بحث له درسي کتاب څخه شرحه کوي، او له څو تنو زده‌کوونکو څخه غواړي چې د تراويح د لمانځه د حکم، وخت او د رکعتونو د شمير په هکله معلومات وړاندې کړي. ور پسې د قضايي لمونځونو په بحث پيل کوي او د قضائي لمونځونو د اداء کولو کيفيت په ساده ژبه  شرحه کوي. د ترتيب د سقوط موضوع هم له زده‌کوونکو څخه دمثال په راوړلو شرحه کوي، او په پای کې د کتاب فعاليت د لارښوونې سره سم سرته رسوي، او د ارزونې ځای ته رارسيږي. | زده‌کوونکي يې لولي.<br><br>زده‌کوونکي غوږ نيسي.<br><br>زده‌کوونکي يې اجراء کوي. |
| ۱۰ دقيقې | **ارزونه:**<br>۱- د تراويح لمانځه حکم څه دی؟<br>۲- د تراويحو لمونځ څنګه اداء کيږي؟<br>۳- د قضايي لمونځونو کيفيت بيان کړئ؟<br>۴- ترتيب کله ساقطيږي؟ | زده‌کوونکي ځواب ورکوي. |
| ۵ دقيقې | **د درس لنډيز:**<br>د تراويحو لمونځ په نارينه او ښځو باندې سنت مؤکد دی، چې د رمضان المبارک په مياشت کښې د ماسختن له لمانځه څخه وروسته او د وترو له اداء څخه مخکې اداء کيږي؟ | زده‌کوونکي غوږ نيسي. |
| | **کورنۍ دنده:**<br>محترم ښوونکی د درسي کتاب د لارښوونې سره سم زده‌کوونکو ته کورنۍ دنده ورکوي. | |

**دولسم لوست**:

**سر ليک:** د لمانځه مفسدات او مکروهات

**مخ:** ۵۲-۵۳

**وخت:** يو درسي ساعت(۴۵ دقيقې)

**موخې:** زده کوونکې باید:

الف: د فساد او کراهيت معنا، د لمانځه مفسدات او مکروهات زده کړي.

ب: دلمانځه د اداء کولو مهارت پيداکړي، بې له دې چې د مفسداتو او مکروهاتو مرتکب شي.

ج: د لمانځه مرتبه او د الله ﷻ په حضور کښې دريدلو آداب په ذهن کې پيدا کړي.

**اضافي معلومات:**

د يادونې وړ ده چې د لمانځه مفسدات او مکروهات ډير زيات دي. په ځينې کتابونو کې لکه په (الفقه الميسر) کښې د مفسداتو شميره تر ۳۰ پورې او د مکروهاتو شميره تر ۵۰ رسيږي، خو ستاسو په کتاب کښې فقط په مهمو نکتو باندې اکتفا شوې ده.

**د تدريس تګ لاره:** شرحه کول، پوښتنه او ځواب او تمثيل.

**مرستندويه درسي توکي:** کتاب، تخته، تباشير او نور.

**د لوست بهير:**

| وخت | د ښوونکي فعاليتونه | د زده‌کوونکي فعاليتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقيقې | **سريزه:**<br>محترم ښوونکی له سلام او روغبړ، د حاضرۍ له اخستلو، د ټولګي د نظافت له ترتيب او کنترول څخه وروسته د پخواني درس ارزونه کوي:<br>ايا کولای شي د تراويح لمانځه په هکله معلومات ورکړی؟<br>قضايي لمونځ څنګه اداء کيږي؟<br>محترم ښوونکی زده‌کوونکي نوي درس ته هڅوي:<br>تاسو پوهيږئ چې لمونځ د الله ﷻ په حضور کښې دريدل دي او ځانته آداب لري. په دې حال کښې انسان نه شي کولای هغه کړنې تر سره کړي چې له لمانځه بهر يې سرته رسوي.<br>په دې درس کښې موږ دا زده کوو چې کوم عملونه لمونځ فاسدوي او کوم مکروه دي. | زده‌کوونکی سلام ته ځواب ورکوي.<br><br>زده‌کوونکي ځواب ورکوي |
| ۲۵ دقيقې | **ددرس وړاندې کول:**<br>۱- محترم ښوونکی د نوې درس سرليک (د لمانځه مفسدات او مکروهات) پر تخته ليکي، له يوه د زده‌کوونکو څخه غواړي چې درس په لوړ غږ ولولي او نور ورته غوږ ونيسي.<br>۲- له هغه وروسته محترم ښوونکی د فساد د لغوي او اصطلاحي معنا له بيانولو سره يو ځل د لمانځه مفسدات شرحه کوي او له څو | زده‌کوونکي غوږ نيسي. |

| | تنو کمزورو زده‌کوونکو څخه غواړي چې د لمانځه مفسدات په ګوته کړي او نوم يې واخلي.<br>۳- ددې په دوام کښې د کراهيت لغوي او اصطلاحي معنا شرحه کوي، حکم يې بيانوي او له هغه وروسته د لمانځه د مکروهاتو د مثال په راوړلو او د لزوم ديد په صورت کښې له تمثيلولو سره شرحه کوي. په پاى کښې د کتاب فعاليت د لاربښوونې سره سم سرته رسوي او د ارزونې ځاى ته رارسيږي: | زده‌کوونکي يې اجراء کوي. |
|---|---|---|
| ۱۰ دقيقې | **ارزونه:**<br>۱- د کراهيت او فساد معنا څه ده؟<br>۲- د لمانځه له مکروهاتو څخه د پنځو نومونه واخلئ؟<br>۳- د لمانځه اته مفسدات په ګوته کړئ؟ | زده‌کوونکي ځواب ورکوي. |
| ۵ دقيقې | **د درس لنډيز:**<br>فساد په لغت کښې ورانۍ ته او د فقهاوو په اصطلاح کښې په عبادت کښې ناسم وصف ته وايي. تاسو د لمانځه له ۱۳ مفسداتو سره اشنا شوئ.<br>کراهيت په لغت کښې د محبت ضد ته وايي او د فقهاوو په اصطلاح کښې هغه دى چې پريښودل يې تر کولو غوره وي. تاسو ۱۸ مکروهات وپيژندل؟ | زده‌کوونکي غوږ نيسي. |
| | **کورنۍ دنده:**<br>محترم ښوونکى د درسي کتاب د لاربښوونې سره سم زده‌کوونکو ته کورنۍ دنده ورکوي. | |

**دیارلسم لوست**:

**سرلیک:** په لمانځه کښې بې اودسه کیدل

**مخ:** ۵۴-۵۷

**وخت:** یو درسي ساعت ( ۴۵د قیقې)

**موخې:** زده کوونکي باید :

الف: په دې وپوهیږي چې که کله یو څوک په لمانځه کښې له خپلې ارادې پرته بې اودسه شي، باید چې وکړي؟ همدا شان که په لمانځه کښې یې سهوه رامینځه ته شي، په څه ډول هغه د سهوې په سجده باندې جبیره کړي؟ که په لمانځه یا اوداسه کښې په شک کښې ولویږي، څه باید وکړي؟ د تلاوت د سجدې په هکله دې هم معلومات لاس ته راوړي.

ب: په پورتنیو عملونو کولو کې دی مهارت تر لاسه کړي.

**اضافي معلومات:**

د یادونې وړ ده چې که کله یو شخص له ارادې پرته په لمانځه کښې بې اودسه شي، کولای شي ولاړ شي اودس وکړي او بیرته لمانځه ته له هغه ځایه دوام ورکړي له کومه یې چې پرې ایښی و، خو په دې شرط چې د اوداسه کولو په جریان کښې خبرې ونه کړي او بې له ضرورته داسې کار ونه کړي چې له لمانځه سره اړخ نه لګوي.

**استخلاف یا د ځان په ځای یو څوک درول:**

امام ته جایزدي چې د کومې غیر اختیاري حادثې د پیښیدلو په وخت کښې ( لکه بې اودسي، ناروغي او نور) یو څوک چې د امامت صلاحیت ولري، د ځان په ځای ودړاکي، په دې شرط چې د لمانځه کوم رکن یې بې اوداسه اداء کړی نه وي.

او که وخت داسې تنګ و چې دویم ځلي لمونځ نشوای کیدای، نو امام ته د قائم مقام ټاکل واجب دي. که امام قایم مقام ونه ټاکی نو مقتدیان هم کولای شي همدا کار وکړي. د استخلاف او قایم مقام ټاکل یا په اشاره او یا محراب ته په راکاږلو سره تر سره کیږي.

**د سهوې سجده:** که چا په لمانځه کښې لومړی ناسته سهوا هیره کړه، تر څو چې نیغ نه وي دریدلی، ناستې ته دې وروګرځي، په همداسې حالت کښې که ولاړې ته نژدې وي ودې دریږي او وروسته دې د سهوې سجده وکړي او که ناستې ته نژدې وي بیا ورباندې د سهوې سجده لازمه نه ده. که د یو چا د نفل لمانځه کښې لومړی قعده هیره شي، هغه دې ناستې ته وروګرځي که نیغ دریدلی هم وي او وروسته دې د سهوې سجده وکړي. که د یو چا وروستی قعده هیره او ودریږي، نو که یې د پنځم رکعت سجده نه وي کړې، ناستې ته دې بیرته وروګرځي او د سهوې سجده دې وکړي. خو که یې د پنځم رکعت سجده وکړه نو د هغه فرض په نفلو بدلیږي او غوره داده چې د ماسپښین، مازدیګر او ماسختن په لمانځه کښې دې شپږم رکعت لمونځ هم وکړي او د سهار په لمانځه کښې دې څلورم رکعت هم ورزیات کړي او د سهوې سجده دې وکړي او فرض دې دویم ځلي وکړي.

که یو څوک د لمانځه واجب قصداً پریږدي، ګناه ګاریږي، لمونځ یې فاسدیږي او د لمانځه راګرځول ورباندې واجبیږي. د امام په سهوې په مقتدي هم د سهوې سجده واجبیږي، او که مقتدي سهوه وکړي نه په امام د سهوې

سجده لازمیږي او نه په مقتدي. په چا د سهوې سجده واجبه ګرځیدلې وي او قصدا یې پرېښې وي ګناهګاریږي او د لمانځه راګرځول واجبیږي.

که کوم شخص په وروستۍ قعده کښې کښیني او تشهد ووايي او بيا وروسته یې ګومان پیداشي چې دا لومړۍ قعده ده اوله قعدې څخه پورته شو، نو بېرته دې کښیني، تشهد دې دويم ځلې نه وايي او سلام دې وګرځوي .

څوک چې څلور رکعتي لمونځ اداء کوي او ګمان یې وکړ چې لمونځ یې بشپړ کړی دی، له سلام څخه وروسته یې پام شو چې دوه رکعته یې کړي دي، نو پاتې رکعتونه دې بشپړ کړي او په پای کښې دې د سهوې سجده وکړي.

**د تلاوت سجده:**

د هغو معینو ایتونو په تلاوت کولو یا اوریدو سره چې په اوریدو یې د تلاوت د سجدې امر شوی دی، په تلاوت کوونکي او اوریدونکي د تلاوت سجده واجبیږي. د الله په وړاندې د خشوع، د الهي فرمان د اطاعت او د سجده کوونکو په صف کښې د داخلیدلوپه نیت به سجده ادا کوي.

**د تدریس تګلاره:** شرحه کول، پوښتنه او ځواب او تمثیل.

**مرستندویه درسي توکي:** کتاب، تخته، تباشیر او نور.

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکي فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | **سریزه:**<br>محترم ښوونکی له سلام او روغبړ، د حاضرۍ له اخستلو، د ټولګي د نظافت له ترتیب او کنترول څخه وروسته کورنی کار ګوري.<br>محترم ښوونکی د پخواني درس ارزونه کوي:<br>آیا تاسو کولای شئ چې د لمانځه د مفسداتو نوم واخلئ؟<br>د کراهیت معنا څه ده؟<br>محترم ښوونکی زده‌کوونکي نوې درس ته هڅوي:<br>تاسو پوهیږئ چې بې له اوداسه لمونځ کول جواز نه لري. امکان لري په لمانځه کښې یو څوک له ارادې پرته بې اودسه شي، یا یوه تیروتنه ورڅخه وشي او یا د سجدې آیت ولولي، نو په داسې حالاتو کښې په کار دي چې له دې احکامو سره اشنا شو. | زده‌کوونکی سلام ته ځواب ورکوي.<br><br>زده‌کوونکی ځواب ورکوي. |
| ۲۵ دقیقې | **د درس وړاندې کول:**<br>۱- محترم ښوونکی د نوې درس سرلیک (په لمانځه کښې بې اودسه کیدل) پر تخته لیکي او له زده‌کوونکو څخه غواړي چې یو ځل په ارامۍ او چوپتیا سره درس ولولي.<br>۲- وروسته له هغه ښوونکی د درس لومړۍ برخه تشریح کوي او له څو تنو زده‌کوونکو څخه غواړي چې د بې اودسۍ له حالاتو څخه یو حالت بیان کړي.<br>۳- بیا د سجدې برخې ته رسیږي، د سهوې د سجدې طریقه تمثیلوي له څو تنو زده‌کوونکو څخه غواړي چې په دې هکله معلومات ورکړي. | زده‌کوونکي په چوپتیا سره درس لولي.<br><br>زده‌کوونکي غوږ نیسي. |

| وخت | د تدريس فعاليتونه | د زده كوونكو فعاليت |
| --- | --- | --- |
|  | ۴- ددې په دوام كښې ددې پوښتنې په مطرح كولو سره چې يو څوك كه په لمانځه كښې په شك كښې ولوېږي، نو هغه بايد څه وكړي؟ ددې بحث په شرحه دې پيل وكړي او د تلاوت د سجدې بحث ته به راورسېږي د سهوې د سجدې دحكمتونو په هكله دې معلومات وركړي او درس به پاى ته ورسوي. په پاى كښې به د كتاب فعاليت له لارښوونې سره سم ترسره كړي. | زده كوونكې يې اجرا كوى. |
| ۱۰ دقيقې | **ارزونه:**<br>۱- د سهوې د سجدې حكم د هغې له اسبابو سره په لنډ ډول بيان كړئ.<br>۲- په كومو حالاتو كښې د سهوې سجده لازمېږي؟<br>۳- د سجدې د ايتونو شمير څو دى؟<br>۴- د سهوې د سجدې طريقه بيان كړئ؟<br>۵- كه يو څوك په لمانځه كښې په شك كښې ولوېږى، څه بايد وكړي؟ | زده كوونكې ځواب وركوي. |
| ۵ دقيقې | **ددرس لنډيز:**<br>څوك چې په لمانځه كښې شكمن شي، هغه كولاى شې ولاړ شي او اودس وكړي. دويم ځلي له هغه ځايه لمونځ پيل كړي په كوم ځاى كښې چې يې پرى ايښى و، پاى ته دې ورسوي او كه امام بې اودسه شي يو څوك دې خپل ځاى ناستى وټاكي.<br>د واجبو په پرېښودلو او د فرضو په ړومبى او وروستى والي باندې د سهوې سجده واجبېږي. د تلاوت سجده هم هغه وخت واجبېږي چې د سجدې ايت تلاوت كړي او ياېې واوري، او د امام په ويلو په مقتدې هم واجبېږي د سجدې آيتونه څوارلس دي. | زده‌كوونكي غوږ نيسي. |
|  | **كورنې دنده:**<br>محترم ښوونكى دې ددرسي كتاب له لارښوونې سره سم زده‌كوونكو ته كورنۍ دنده وركړي. |  |

## څوارلسم لوست:

**سرليک:** د ناروغ لمونځ

**مخ:** ۵۸-۵۹

**وخت:** يو درسي ساعت (۴۵ دقيقې)

**موخې:** زده‌کوونکي بايد :

الف: د ناروغ او مسافر د لمانځه احکام د حالاتو او مختلفو تګ لارو له مخې زده کړي.

ب: د پورتنيو عملونو د سرته رسولو مهارت دې پيدا کړي.

### اضافي معلومات:

د اسلام مقدس دين د مهرباني او آساني دين دی، الله تعالی ﷻ فرمايي: **﴿لَا يُكَلِّفُ اللَّهُ نَفْسًا إِلَّا وُسْعَهَا﴾ [البقرة : ٢٨٦]** " الله هيڅ نفس ته دهغه له وسي نه پورته مسئوليت نه متوجه کوي "

له هم دې امله ناروغ ته اجازه ورکړ شوې ده چې له خپل وس سره سم لمونځ وکړي.

نبی کريم ﷺ عمران بن حصين ته وويل: **{ صَلِّ قَائِمًا فَإِنْ لَمْ تَسْتَطِعْ فَقَاعِدًا فَإِنْ لَمْ تَسْتَطِعْ فَعَلَى جَنْبٍ وإلا فأومئ }** " لمونځ په ولاړې کوه، که دې نه شوای کولای په ناستې يې کوه او که دې نه شوای کولای په اړخ پروت يې کوه او که دې نه شو کولای نو په اشاره يې کوه".

د لمانځه پريښودل د ناروغی په حال کښې هم جواز نه لري. دا د لمانځه اهميت په ګوته کوي.

که د يو چا بی هوښي او ليونتوب تر يوې ورځې او شپې څخه زيات دوام وکړي او د هغه فوت شوې لمونځونه تر شپږو ورسيږي، د هغو قضايې يې له غاړې ساقطيږي.

### د مسافر لمونځ:

الله تعالی ﷻ فرمايي: **﴿وَإِذَا ضَرَبْتُمْ فِي الْأَرْضِ فَلَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ أَنْ تَقْصُرُوا مِنَ الصَّلَاةِ﴾ [النساء: ١٠١]**." کله چې په ځمکه کښې سفر کوئ په تاسو کومه ګناه نه شته چې تاسو خپل لمونځ قصر کړئ".

بخاري او مسلم له حضرت انس رضی الله عنه څخه روايت کړی دی وېې ويل: ( موږ له رسول الله ﷺ سره يوځای له مدينې څخه د مکې په خوا ووتلو او په دې سفر کښې رسول الله ﷺ دوه دوه رکعته لمونځ کاو.)

د مسافر اقتداء په مقيم پسې روا ده او د هغه په متابعت کښې دې خپل لمونځ څلور رکعته اداء کړي او د مقيم اقتداء په مسافر پسې روا ده. کله چې امام مسافر او مقتديان مقيم وي، امام دې له څلور رکتي لمونځ څخه دوه رکعته لمونځ کوي اوسلام ګرځوي له سلام څخه وروسته غوره داده چې ووايي: تاسو خپل لمونځ بشپړ کړئ ځکه زه مسافريم او تر دې هم غوره داده چې د لمانځه په پيل کښې دا خبره وکړي.

**د وطن ډولونه او دهغه احکام:**

اصلي وطن په اصلي وطن باطلیږي. هر کله چې خپل اصلي وطن پریږدئ، او له هغه ځایه بل ځای ته ولاړ شئ او هغه ځای یې خپل اصلي وطن وګرځاوه او وروسته د کوم کار لپاره خپل لومړني وطن ته راغی، نو دی به قصر لمونځ کوي، ځکه چې دغه ښار اوس دده وطن نه دی.

د اقامت وطن د اقامت په وطن باندې باطلیږي. همدارنګه د اقامت وطن له هغه ځخه په سفر کولو او له هغه څخه وطن اصلي ته په راګرځیدلو هم باطلیږي.

**اصلي وطن:** اصلي وطن هغه ځای دی، چې هغه یې د هستوګنې په توګه نیولی وي. دا ضروري نه ده چې هلته یې واده کړی وي او که نه.

**د اقامت وطن :** د اقامت وطن هغه دی چې په هغه ځای کښې یو چا د پنځلسو ورځو او یا له هغو څخه د زیاتو شپو نیت کړی وي.

**د تدریس تګ لاره:** شرحه کول، پوښتنه او ځواب، او تمثیل.

**مرستندویه درسي توکي:** کتاب، تخته، تباشیر او نور.

**د درس جریان:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکي فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | **سریزه:**<br>محترم ښوونکی له سلام او روغبړ، د حاضرۍ له اخستلو، د ټولګي د نظافت له ترتیب او کنترول څخه وروسته د پخواني درس ارزونه کوي:<br>د سهوې د سجدې معنا او حکم څه شی دی؟<br>که یو څوک په لمانځه کښې په شک کښې اخته شي، څه باید وکړي؟<br>د تلاوت د سجدې په هکله څه معلومات لرئ؟<br>محترم ښوونکی زده کوونکي نوي درس ته هڅوي:<br>کله انسان ناروغه کیږي او کله په سفر کښې وي. په دې ډول حالاتو کښې انسان له ستونزو سره مخامخ کیږي. له همدې امله د اسلام مقدس دین د هغو د حل لپاره د اسانو لارو توصیه کړې ده چې په دې درس کښې له هغو سره اشنا کیږو. | زده کوونکي سلام ته ځواب ورکوي.<br><br>زده کوونکي ځواب ورکوي. |
| ۲۵ دقیقې | **د درس وړاندې کول:**<br>۱- محترم ښوونکی د نوي درس سرلیک (د ناروغ لمونځ) پر تخته لیکي، له زده کوونکو څخه غواړي چې یو ځلې درس په کراری او چوپتیا سره ووایي او پخپله د درس څنګلوري سرلیکونه پر تخته لیکي.<br>۲- وروسته محترم ښوونکی ددرس لومړۍ برخه تشریح کوي او له څو تنو زده کوونکو څخه غواړي چې د ناروغ یو حالت او په هغه وخت کښې د لمانځه د اداء کولو څرنګوالی شرحه کړي.<br>۳- بیا د مسافر د لمانځه برخې ته رارسیږي او دهغه احکام شرحه کوي لومړی له څو تنو زده کوونکو څخه غواړي چې په دې باره کښې معلومات | زده کوونکي درس لولي.<br><br>زده کوونکي غوږ نیسي. |

| | | |
|---|---|---|
| | ویراندې کړي.<br>۴- په پای کې ددې پوښتنې په مطرح کولو سره چې آیا پوهیږئ د قصر معنا څه ده؟ د قصر په توضیح او شرطونو پیل کوي او له څو تنو کمزورو زده کوونکو څخه غواړي چې څه مو زده کړې دي هغه شرحه کړي.او وروسته د ارزونې برخې ته رارسیږي. | زده کوونکي تشریح ورکوي. |
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>۱- د ناروغ د لمانځه په هکله لنډ معلومات وړاندې کړئ؟<br>۲- د سفر مخصوص احکام په لنډ ډول بیان کړئ؟<br>۳- قصر څه ته وایي او حکم يې څه دی؟<br>٤- کوم حکمونه له مسافر څخه ساقطیږي؟ | زده کوونکي ځواب ورکوی. |
| ۵ دقیقې | **ددرس لنډیز:**<br>تاسوپه دې درس کښې د ناروغ د لمانځه له کیفیت سره اشنا شوئ او دا مو زده کړل چې مسافر څه سهولتونه لري، دقصر معنا، حکم او د هغه شرطونه مو هم وپیژندل. | زده کوونکي غوږ نیسي. |
| | **کورنۍ دنده:**<br>محترم ښوونکی دې د درسي کتاب له لارښوونې سره سم زده کوونکې ته کورنۍ دنده ورکړي. | |

**پنځلسم لوست**:

**سرليك:** دجماعت لمونځ

**مخ:** ۱۲۸-۱۲۹

**وخت:** يو درسي ساعت (۴۵ دقيقې)

**موخې:** زده‌کوونکي بايد :

**الف:** دا زده کړي چې د جماعت د لمانځه حکم څه دی، څوک د امامت حقدار دی او څوک کولای شي په چا پسې اقتداء وکړي.

**ب:** د پورتنيو احکامو د عملي کولو مهارت پيدا کړي.

**اضافي معلومات:**

الله تعالی ﷻ فرمايي: ﴿**وَارْكَعُوا مَعَ الرَّاكِعِينَ**﴾ [**البقرة : ٤٣**]." او کوم خلك چې ماته سرټيټوي تاسې هم له هغو سره ټيټ شئ " رسول کريم ﷺ فرمايلي دي: ( **صَلاَةُ الْجَمَاعَةِ تَفْضُلُ صَلاَةَ الْفَذِّ بِسَبْعٍ وَعِشْرِينَ درجة**).

"په جماعت سره لمونځ اداء کول له يوازې اداء کولو څخه اووه ويشت ځلې غوره دی."

جماعت هغه اړيکه ده چې د امام اومقتدي تر مينځ پيدا کيږي.

که له امام سره يو تن وي په ټولو لمونځونو کښې جماعت کولای شي. يوازې د جمعې په لمانځه کښې يې نه شي کولای، چې په هغه کښې له امام څخه علاوه د دريو تنو شتون شرط دی.د جمعې اواخترونو لمونځونه بې له جماعته صحيح نه دي. په دعوت او اعلان سره د نفلي لمونځونوپه جماعت اداء کول مکروه دي، خو که خلك بې له دعوت او خبرتيا راټول شوې وو او دجماعت لمونځ بې له آذان او اقامت څخه وکړي، کراهيت نه لري.

د کلي په داسې مسجد کښې دويم ځلي جماعت درول چې امام او مؤذن ولري او يو ځل لمونځ هم پکې شوی وي، مکروه دی، خو د ځای په تغير سره په دې ډول چې د دويم جماعت امام د لومړني امام له ځای څخه پرته بل ځای امامت وکړي، مکروه نه ګڼل کېږي.

**د تدريس تګ لاره:** شرحه کول، پوښتنه او ځواب، تمثيل.

**مرستندويه درسي توکي:** کتاب، تخته، تباشير او نور.

ددرس بهير:

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکي فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | **سریزه:**<br>محترم ښوونکی له سلام او روغبړ، د حاضرۍ له اخستلو، د ټولګي د نظافت له ترتیب او کنترول څخه وروسته، کورنی کار ګوري.<br>محترم ښوونکی د پخواني درس ارزونه کوي:<br>ایا پوهیږئ چې ناروغ څنګه لمونځ کوئ؟<br>له قصر څخه مقصد څه دی؟<br>د سفر په هکله څه معلومات لرئ؟<br>محترم ښوونکی زده‌کوونکي نوي درس ته هڅوي:<br>ایا تاسو پوهیږئ چې موږ مسلمانان زیاتره په ټولیز ډول په جوماتت کښې لمونځونه کوو، دغه کار د جماعت په نامه یادیږي، دغه درس د جماعت د لمانځه په هکله معلومات راکوي. | زده‌کوونکی سلام ته ځواب ورکوي.<br><br>زده‌کوونکی ځواب ورکوي. |
| ۲۵ دقیقې | **ددرس وړاندې کول:**<br>۱- محترم ښوونکی د نوي درس سرلیک( د جماعت لمونځ) پر تخته لیکي او له دریو زده‌کوونکو څخه غواړي چې د لوست یو یو پاراګرف په لوړ غږ سره ولولي. پخپله ښوونکی څنګلوري سرلیکونه پر تخته لیکي تر څو زده‌کوونکي اصلي موضوع ته ځیر شي.<br>۲- له هغه وروسته محترم ښوونکی د جماعت د حکم له بیانولو سره دا پوښتنه مطرح کوی: ایا تاسو پوهیږئ چې څوك د امامت کولو لپاره د لومړیتوب حق لري؟ وروسته بیا له کتاب څخه ځواب ورکوي او د زده‌کوونکو ارزونه کوي.<br>۳- د اقتداء د معنا له تشریح څخه وروسته دهغو د احکامو په تشریح باندې پیل کوي او په دې اړه ځینې پوښتنې مطرح کوي او له زده‌کوونکو څخه غواړي چې ځواب ورکړي.<br>۴- وروسته د جماعت د نورو مباحثو په تشریح کولو پیل کوي او د ارزونې برخې ته رارسیږي. | زده‌کوونکي درس لولي.<br><br>زده‌کوونکي غوږ نیسي.<br><br>زده‌کوونکي تشریح ورکوي. |
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>۱- د جماعت د لمانځه حکم څه دی؟ څوك د امامت کولو لپاره د لومړی توب حق لري؟<br>۲- د اقتداء له احکامو څخه ځینې بیان کړئ.<br>۳- په کومو ځایونو کښې د جماعت تکرارول جائز دي؟ | زده‌کوونکي ځواب ورکوي. |

| ۵ دقیقې | **د درس لنډیز:**<br>تاسو په دې درس کښې د جماعت د لمانځه له حکم او د امامت د لومړیتوب له حقدارو سره اشنا شوئ، د اقتداء ځینې احکام مو زده کړل او په دې پوه شوئ چې د جماعت د تکرار حکم څه دی او په کومو ځایونو کښې د جماعت تکرار جواز لري. | زده کوونکي غوږ نیسی. |
|---|---|---|
| | **کورنۍ دنده:**<br>محترم ښوونکی دې ددرسي کتاب له لارښوونې سره سم زده کوونکو ته کورنۍ دنده ورکړي. | |

**شپاړلسم لوست**:

**سرليك:** د جمعې او اخترونو لمونځونه

**مخ:** ۱۳۰- ۱۳۳

**وخت:** يو درسي ساعت( ۴۵ دقيقې)

**موخې:** زده کوونکې بايد:

**الف:** د جمعې او اخترونو د لمانځه حکم، د هغو د وجوب او د صحت شرطونه وپيژني. همدا شان د تشريق تکبيرونه د هغو د ويلو له وخت سره زده کړي.

ب: د پورتنيو حکمونو د عملی کولو مهارت پيدا کړي.

**اضافي معلومات:**

د جمعې لمونځ له هغو فضائلو څخه دی چې الله تعالی ﷻ دغه امت وربانديې نازولی دی، تر څو د دغې ورځې لـه برکتونو څخه استفاده وکړي او نيکمرغيو او برياليتوبونو ته ورسيږي.

په يوه حديث کښې، چې امام بخاري او مسلم يې روايت کړی دی، ابوهريره رضی الله عنه فرمايي: موږ ( دنيا تـه پـه راتلو کې) له نورو څخه وروسته يو، خو د قيامت په ورځ به( په فضيلت، غوراوي او جنت ته په تلـو کـې) لـه نـورو څخه مخکې يو. له موږ څخه مخکې هغوی ته اسماني کتاب( اسـمانی شـريعت) ورکـړ شـوی و او د غـه ( دجمعـې ورځ) په هغوی فرض شوې وه ( څو الله ته نژديوالی حاصل کړي) خو هغوی پـه دې هکلـه پـه اخـتلاف کـې اختـه شول. الله تعالی موږ ته هدايت وکړ، نو په دې هکله زموږ څخه وروسته نور خلك دي: سبا (شنبې) ته (يهود)، او بـل سبا (يکشنبې) ته نصاری.

د جمعې مشروعيت: الله تعالی ج فرمايي: **يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا نُودِي لِلصَّلَاةِ مِن يَوْمِ الْجُمُعَةِ فَاسْعَوْا إِلَى ذِكْرِ اللَّـهِ وَذَرُوا الْبَيْعَ ذَلِكُمْ خَيْرٌ لَّكُمْ إِن كُنتُمْ تَعْلَمُونَ ﴿٩﴾** " ای مومنانو ! کله چيگ دجمعيگ په ورحگ دلمانحگه لپـاره نـداء (اذان) وشي، نو دالله د ذکر خواته په بيړه سره روان او پېر او پلور پريـږدئ داستاسې لـه پـاره ډيـره غـوره ده کـه تاسـې پوهيږئ"

نبی کريم ﷺ فرمايلی دي: (**الْجُمُعَةُ حَقٌّ وَاجِبٌ عَلَى كُلِّ مُسْلِمٍ**) "په هر مسلمان جمعه حق او واجب ده".

په هغو کسانو چې د جمعې لمونځ واجب نه وي، که يې هغه اداء کړ لمونځ يې صحت لـري او د ماسپښـين لمـونځ يې له ذمې ساقطيږي، آن داچې دجمعې د لمانځه کول ورته مستحب دي.

او ښځې هم کولای شي چې د شرايطو په پوره والي د جمعې په لمانځه کښې شرکت وکړي، او که يې شرکت ونه کړ په کور کښې دې د ماسپښين لمونځ وکړي.

د لومړی اذان په کيدلو سره لمانځه ته تلل او پلورل او پيرل پريښودل واجب دي. کلـه چـې امـام د خطبـې ويلـو تـه اوچت شي، نو لمونځ او خبرې کول، سلام او پرنجي ته ځواب ورکول جواز نه لري. خطيب ته هـم مکـروه ده چـې خطبه اوږده کړي.

که يو څوك په داسې حال کښې د جمعې لمانځه ته راورسيږي چې امام په تشهد يا د سهوې کولو په صورت کې د سهوې د سجدې د اداء کولو په حال کښې وی، هغه د جمعې لمونځ موندلی دی. د امام له سلام څخـه وروسـته دې اوچت شي او دوه رکعته لمونځ دې وکړي.

**د دوو اخترونو لمونځ:**

عید، له عود ( بیرته ګرځیدو) څخه مشتق دی. عید ته له دې امله عید ویل کیږي چې هغه په کال کې بیا راګرځي، او یا دهغو په راتګ سره خوشحالي تکراریږي. یا له دې امله چې الله تعالی په هغه ورځ کښې خپل احسان او مغفرت خپلو بندګانو ته راګرځوي.

**د مشروعیت دلیل:**

له قران کریم څخه دلیل : الله تعالی ﷻ فرمایي: **{فَصَلِّ لِرَبِّكَ وَانْحَرْ}** " نو ته د خپل هماغه رب له پاره لمونځ ادا کوه او قرباني وکوه ".

له سنت نبوی څخه: ابو داؤد له حضرت انس رضی الله عنه څخه روایت کوي، رسول الله ﷺ مدینې منورې ته تشریف راووړ او ویې لیدل چې خلك په دوو ورځو کښې خوشحالي او جشنونه کوي. ویې فرمایل: دغه دوه ورځې څه دي؟ دوی وویل : موږ د جاهلیت په زمانه کښې په دغو دوو ورځو کښې ساعت تیري او لوبې کولې، رسول الله ﷺ وفرمایل: الله تعالی ﷻ ستاسو لپاره ددې دوو ورځو په بدل کښې دوه تر دې غوره ورځې درکړې چې د لوی اختر او واړه اختر ورځې دي.

**د اخترونو د لمانځه وخت :**

وروسته له دې چې لمر یو څه شانته لوړ شی (تقریبا یوه نیزه) دغه لمونځ اداء کیږي او د لمر له زوال سره یې وخت پای ته رسیږي. په هغه کښې څه تکبیرونه دي چې د زوایدو په نوم سره یادیږي.

**د اخترونو د لمانځه څرنګوالی:**

په دې باره کښې دې محترم ښوونکی باید دقت وکړي چې لومړني ماده د نیت په هکله ده. یو څه مغلقه ده نو د زده‌کوونکو د اندیښنې د لیرې کولو لپاره دا **مسألة** باید ووایو: مقتدي له امام سره دریږي او د اختر لمونځ اداء او د امام متابعت کوي.

**د تدریس تګ لاره:** شرحه کول، پوښتنه او ځواب او تمثیل.

**مرستندویه درسي توکي:** کتاب، تخته، تباشیر او نور.

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکي فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | **سریزه:**<br>محترم ښوونکی له سلام او روغبړ، د حاضرۍ له اخستلو، د ټولګي د نظافت له ترتیب او کنترول څخه وروسته، کورنی کار ګوري.<br>محترم ښوونکی د پخواني درس ارزونه کوي:<br>کوم کسان د امامت کولو لپاره د لومړیتوب حق لري؟<br>د جماعت د لمانځه په هکله څه معلومات لرئ؟<br>محترم ښوونکی د نوي درس هڅونه پیلوي:<br>تاسو پوهیږئ چې د جمعې او اخترونو ورځې زموږ د مسلمانانو د رخصتۍ ورځې دي. او په دې ورځو کښې موږ ټول په مسجد کښې راټولیږو او لمونځ کوو ایا پوهیږئ چې ددې لمونځونو نومونه څه دي، څنګه اداء کیږي او له نورو لمونځونوسره څه توپیر لري؟ | زده‌کوونکی سلام ته ځواب ورکوي.<br>زده‌کوونکی ځواب ورکوي. |

| | | |
|---|---|---|
| ۲۵ دقیقې | **ددرس وړاندې کول:**<br>۱- محترم ښوونکی د نوی درس سرلیک(د جمعې او اختر لمونځ) پر تخته لیکي، له زده‌کوونکو څخه پوښتنه کوی ایا تاسو د جمعې لمانځه ته ځئ؟ ایا تاسو پوهیږئ چې څنګه اداء کیږي؟<br>څو تنه زده‌کوونکي معلومات ورکوي او وروسته ښوونکی د کتاب په تشریح پیل کوي، شرطونه بیانوي او دویم ځلې له زده‌کوونکو څخه پوښتنه کوي او د کتاب لومړی فعالیت د لاربښوونې سره سم اجراء کوي.<br>۲- له هغه وروسته محترم ښوونکی د اخترونو د لمونځونو او دهغو د اداء کولو په طریقه خبري کوي او له څو تنو زده‌کوونکو څخه غواړي چې په ترتیب سره د لمانځه د اداء کولو څرنګوالی بیان کړی.<br>۳- بیا د تشریق بحث ته رارسیږي او د تشریق معنا بیانوي او په دې اړوند معلومات ورکوي او دکتاب دویم فعالیت له لارښوونې سره سم اجراء کوي.<br>وروسته د ارزونې برخې ته رارسیږي: | زده‌کوونکي غوږ نیسي.<br><br><br>زده‌کوونکي غوږ نیسي او ځواب ورکوی.<br><br><br>زده‌کوونکي غوږ نیسي. |
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>۱- د تشریق ورځې کومې دي؟ په لنډ ډول یې بیان کړئ.<br>۲- د جمعې او اخترونو د لمونځونو حکم څه دی؟<br>۳- د جمعې او اخترونو د وجوب او صحت شرطونه بیان کړئ؟<br>۴- د اختر د لمانځه لپاره په لمونځ کوونکی کوم شیان سنت دي؟<br>۵- د تشریق تکبیرونه ووایاست. | زده‌کوونکی ځواب ورکوي. |
| ۵ دقیقې | **ددرس لنډیز:**<br>تاسو په دې درس کښې د جمعې لمانځه د وجوب له څلورو او د صحت له اوو شرطونو سره اشنا شوی، ومو لیدل چې همدغه شرطونه د اخترونو د لمونځونو هم دي. همدا شان د اخترونو د لمونځونو د اداء کولو طریقه مو هم زده‌کړه. | زده کوونکې غوږ نیسی. |
| | **کورنی دنده:**<br>محترم ښوونکی دې ددرسي کتاب له لارښوونې سره سم زده کوونکې ته کورنی دنده ورکړي. | |

## اوولسم لوست:

**سرليک:** د کسوف او خسوف لمونځ

**صفحه:** ۱۳۴-۱۳۵

**وخت:** يو درسي ساعت ( ۴۵ دقيقې)

**موخې:** زده‌کوونکي بايد:

**الف:** د کسوف او خسوف معنا او په دې وختونو کښې د لمانځه د اداء کولو څرنګوالی او همدا شان د استسقاء (د باران غوښتنې) لمونځ زده کړي.

**ب:** د دې لمونځونو د عملی کولو مهارت پيدا کړي.

**ج:** د مصيبتونو په وخت کښې د دعاء ارزښت د زده‌کوونکو په ذهن کښې پيدا شي.

**اضافي معلومات:**

مسلمانان د کسوف او خسوف لمونځونو په اداء کولو سره الله تعالی ﷻ ته پناه وروړي او له هغه ﷻ څخه غواړي چې له دوی څخه بلا او مصيبت ليرې کړي، روښنايي او رڼا ورپه برخه کړي.

بخاري له ابوبکر رضی الله عنه څخه روايت کړی دی، چې:(د رسول کريم ﷺ په زمانه کښې خسوف پيښ شو او هغه ﷺ په داسې حال کې له کوره بهر شو او مسجد ته راغی چې څادر يې په ځمکه کښيدو. خلک هم دوی ﷺ ته ورټول شول، هغوی ته يې دوه رکعته لمونځ ورکړ تر څو چې سپوږمی روښانه شوه دا پيښه د نبي کريم ﷺ د کشري زوی ابراهيم له وفات سره مصادفه وه، نو پيغمبر ﷺ په همدې حال کښې وفرمايل: لمر او سپوږمی د الله ﷻ د قدرت دوه نښې دي. نه د چا د مرګ لپاره خسوف پيښيږي او نه د چا د ژوند لپاره بلکې الله پاک د خسوف او کسوف په واسطه خپل بندګان ويروي. هر کله چې داسې حادثه پيښيږي لمونځ وکړئ، ترڅو الله پاک ﷻ هغه څه درڅخه ليرې کړي چې تاسو ته يې درپيښ کړی دي.)

**د استسقاء لمونځ:**

دا مستحب ده چې استسقاء ته له تلو څخه مخکې صدقه ورکړل شي او خلک روژه ونيسي او ډير استغفار وکړي.

د استسقاء دعاء: امام دې په دعاء کښې داسې ووايې: ( اللهم اسقنا غيثا نافعا غير ضار عاجلا غير آجل، اللهم اسق عبادک و بهائمک، وانشر رحمتک، واحی بلدک الميت، اللهم انت الله لا اله الا انت الغنی و نحن الفقراء انزل علينا الغيث، واجعل ما انزلت لنا قوة و بلاغا الی حين.)

"ای پروردګاره! په موږ د خير او کټور باران را واوروه چې هيڅ تاوان پکې نه وي، چې ژر را واوروي او ځنډ پکې پيدا نه شي، پروردګاره! خپل بندګان او څاروي دې ورباندې اوبه کړه، خپل رحمت خپور کړه او مړ وطن وربانـدې ژوندی کړه، پروردګاره! ته الله معبود بر حق يې او له تا څخه پرته بل معبود نشته، ته غنی يې او موږ فقيران، په موږ باران را واوروه، او څه چې راباندې اوروې زموږ د قوت او(ترکومه چې تا مقرر کړی وي) د ژوندي پاتې کيدو سبب يې وګرځوه"

**د تدريس تګ لاره:** شرحه کول، پوښتنه او ځواب، تمثيل.

**مرستندويه درسي توکي:** کتاب، تخته، تباشير او نور.

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکي فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | **سریزه:**<br>محترم ښوونکی له سلام او روغبړ، د حاضرۍ له اخستلو، د ټولګي د نظافت له ترتیب او کنترول څخه وروسته د وخت په پام کښې نیولو سره کورنی کار ګوري.<br>محترم ښوونکی د پخواني درس ارزونه کوي:<br>د جمعې د لمانځه په هکله معلومات ورکوي.<br>د اختر لمونځ څنګه ادا کیږي؟<br>محترم ښوونکی د نوي درس هڅونه پیل کوي:<br>تاسو پوهیږئ چې لمونځ له الله تعالی ﷻ سره د راز او نیاز ډیره غوره وسیله ده. مسلمانان له فرضو لمونځونو علاوه ددوی د حاجاتو د پوره کیدلو او د بلاوو د دفع کیدلو لپاره هم له الله تعالی ﷻ څخه مرسته غواړي او لمونځ کوي، چې تاسو به په دې درس کښې له همداسې څو لمونځونو سره اشنا شی. | زده‌کوونکی سلام ته ځواب ورکوي.<br><br>زده‌کوونکی ځواب ورکوي. |
| ۲۵ دقیقې | **ددرس وړاندې کول:**<br>۱- محترم ښوونکی د نوي درس سرلیک(د کسوف او خسوف لمونځ) پر تخته لیکي، له زده‌کوونکو څخه پوښتنه کوی، ایا تاسو پوهیږی چې د کسوف او خسوف معنا او د هغو علت څه دی؟ ایا پوهیږئ چې د کسوف او خسوف لمونځونه څنګه اداء کیږي؟<br>وروسته د درس په تشریح پیل کوي او له زده‌کوونکو څخه غواړي چې د هغو پوښتنو ځوابونه ووایي چې هغه یې مطرح کړې وې.<br>۲- وروسته ښوونکی د استسقاء او هغه ته د وتلو په هکله معلومات ورکوی.<br>د کتاب فعالیت له لارښوونې سره سم تر سره کوي.<br>او وروسته د ارزونې برخې ته رسیږي. | زده کوونک غوږ نیسي او ځواب ورکوي.<br><br>زده‌کوونکي یې اجراء کوي. |
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>۱- د خسوف او کسوف معنا څه ده؟<br>۲- د خسوف لمونځ څېرې اداء کیږي؟<br>۳- د استسقاء معنا څه ده؟ | زده‌کوونکی ځواب ورکوي. |

| | | |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | **ددرس لنډیز:** کسوف د سپوږمی د رڼا د کمیدلو په معنا دی او د کسوف لمونځ مؤکد سنت دی، دوه رکعته په جماعت سره اداء کیږي، او خطبه نه لري. او خسوف د لمر د رڼا د کمیدلو په معنا دی، د خسوف لمونځ په کور کښې اداء کیږي. استسقاء د باران د کیدلو د غوښتنې په معنا ده، په جماعت سره ددوه رکعتونو له اداء کولو څخه وروسته امام خطبه لولي او دعاء کوي. | زده کوونکې غوږ نیسی. |
| | **کورنی دنده:** محترم ښوونکی دې د درسي کتاب له لارښوونې سره سم زده کوونکې ته کورنی دنده ورکړي. | |

**اتلسم لوست**:

**سرليک:** د جنازې احکام

**مخ:** ۱۳۶-۱۳۷

**وخت:** يو درسي ساعت ( ۴۵ دقيقې)

**موخې:** زده کوونکي بايد :

**الف:** د جنازې معنا له هغو آدابو سره، چې يو څوک يې د ځنکدن په وخت کښې بايد مراعات کړي، زده کړي او وپوهيږي چې مړی څه حقوق لري او د حقيقي شهيد احکام څه دي او که نوی ماشوم وفات شي هغه څنګه دفن شي.

ب: د پورتنيو احکامو د عملي کولو مهارت پيدا کړي.

**اضافي معلومات:**

رسول الله ﷺ فرمايلي دي: ( **من كان آخر كلامه لا اله الا الله دخل الجنة**) "د چا چې وروستی کلام لا اله الا الله وي هغه به جنت داخل شي".

په چا کښې چې د مرګ نښې پيدا شي دا سنت ده چې په ښي اړخ څملي او د قبلې خواته مخ کړي او دا هم روا ده چې د شا په تير(ستوني ستغ) څملی په داسې ډول چې پښې يې د قبلې خواته وي او سر يې يو څه پورته کيښودل شي څو يې مخ د قبلې په لور شي.

دا مستحب ده چې دهغه په وړاندې د يس سورت وويل شي. په حديث کښې راغلی دي:

( **ما من مريض يقرا عنده يس الا مات ريان، و ادخل في قبره ريان، و حشر يوم القيامة ريان**)، " د هر هغه ناروغ (چې د ځنکدن په حال کې وي ) په مخ کښې د يس سورت وويل شي، هغه به تږی نه مري او تږی به قبر ته نه درومی او د قيامت په ورځ به هم تږی نه راپور ته کيږي."

څوک چې د مړي سترګې ور بندوي د شهدت د کلمې تلقين دې ورته وکړي او کله يې چې په قبر کې ږدي، ودې وايي: { **بِسْمِ اللَّهِ وَعَلَى مِلَّةِ رَسُولِ اللَّهِ، اللَّهُمَّ يَسِّرْ عَلَيْهِ أَمْرَهُ وَسَهِّلْ مَوْتَهُ وَأَسْعِدْهُ بِلِقَائِك وَاجْعَلْ مَا خَرَجَ إِلَيْهِ خَيْرًا مِمَّا خَرَجَ عَنْهُ**}.

" د الله په نامه او د رسول الله ﷺ په طريقه دې په قبر کې ږدو، يا الله اسانه کړی ده ته دا کار دده او ورباندې اسانه کړې دده مرګ او دی په خپل ديدار نيکمرغه کړي او دی چې کوم لوري ته وتلی هغه تر هغه ورته ښه کړې چې ترې وتلی".

د يو چا له مرګ څخه د نورو خبرول هم مستحب کار دی.

**د شهيد تعريف:**

شهيد هغه مسلمان ته وايي چې مظلومانه ووژل شي، ددې توپير نه شته که هغه په جنګ کښې وژل شوی وي يا باغيانو او يا غلو وژلی وي.

د شهيدانو د فضيلت په هکله کولای شی د آل عمران سورت ۱۹۶-۱۹۷ ايتونو ته مراجعه وکړئ.

**د شهيدانو ډولونه:**

شهيد په دری ډوله دی :

۱- د دنيا او اخرت شهيد چې هغه کامل شهيد دی. ۲- د آخرت شهيد. ۳- د دنيا شهيد.

۱- کامل شهادت هغه وخت تحقق پیدا کوي چې وژل شوی مقتول، عاقل، بالغ او له حدث اکبر( لویې بې اودسې) څخه پاك وي او دده د زخم او مرګ تر مینځ دومره فاصله نه وي چې هغه ددنیا له نعمتونو څخه لکه خوړلو، څښلو، ویده کیدلو او تداوي کولو څخه ګټه واخلي، او د یوه لمانځه وخت یې په هوښیارۍ نه وي تیر کړی. نو ځکه د شهید احکام وربانديې اجرا کیږي.

۲- د اخرت شهید هغه دی چې له اسلام څخه پرته نور شرطونه پوره نه کړي، په داسې یو شخص د شهید احکام نه اجرا کیږي، خو هغه د اخرت په ورځ شهید او شهید ته د ورکړل شوې برخې څخه برخمن دی. دغه ډول شهید ته غسل ورکول کیږي او د جنازې لمونځ وربانديې اداء کیږي.

۳- د دنیا شهید، هغه منافق دی چې د مسلمانانو په صف کښې شهید شي. هغه یوازې ددنیا شهید دی. هغه ته دده د ظاهري حالت له مخې غسل نه ورکول کیږي او په جامو کښې ورته کفن ورکول کیږي او په هغه د کامل شهید په شان د جنازې لمونځ اداء کیږي.

**د تدریس تګ لاره:** شرحه کول، پوښتنه او ځواب، او تمثیل.

**مرستندویه درسي توکي:** کتاب، تخته، تباشیر او نور.

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکي فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | **سریزه:**<br>محترم ښوونکی له سلام او روغبړ، د حاضرۍ له اخستلو، د ټولګي د نظافت له ترتیب او کنترول څخه وروسته کورنی کار ګوري.<br>محترم ښوونکی د پخواني درس ارزونه کوي:<br>د کسوف معنا څه ده او د کسوف لمونځ څنګه اداء کیږي؟<br>د استسقاء د لمانځه کیفیت بیان کړئ.<br>محترم ښوونکی د نوي درس هڅونه پیلوي:<br>پوهیږئ چې د اسلام مقدس دین د انسان لپاره له زیږیدو نیولی د وفات او په قبر کښې د ایښودلو تر وخته ځانګړی احکام او حقوق وضع کړې دي. په دې درس کښې له هغو احکامو سره اشنا کیږو چې د انسان له وفات او د جنازې لمانځه سره اړیکه لري. | زده کوونکي غوږ نیسي او ځواب ورکوي.<br><br>زده‌کوونکي یې اجراء کوي. |
| ۲۵ دقیقې | **د درس وړاندې کول:**<br>۱- محترم ښوونکی د نوي درس سرلیك(د جنازې احکام ) پر تخته لیکي. له زده‌کوونکو څخه غواړي چې یو ځل په کراره او چوپتیا سره درس ولولي. پخپله څنګلوري سرلیکونه پر تخته لیکي.<br>۲- وروسته د زده‌کوونکو پام د لیکل شویو سرلیکونو خواته اړوي او د درس په شرحه پیل کوي. د هر سرلیك په پای کښې له زده‌کوونکو څخه غواړي چې د متن پوښتنو ته ځواب ووایي.<br>۳- وروسته ښوونکی د کتاب فعالیت له لارښوونې سره سم اجرا کوي.<br>وروسته د ارزونې برخې ته رارسیږي. | زده‌کوونکي غوږ نیسي او ځواب ورکوي.<br><br>زده‌کوونکي یې اجرا کوي. |

| | | |
|---|---|---|
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>۱- جنازه څه ده؟<br>۲- د ښخکدن اداب او سنتونه بیان کړئ ؟<br>۳- د مړي حقوق په مختصر ډول بیان کړئ.<br>۴- د حقیقي شهید احکام په لنډ ډول بیان کړئ؟<br>۵- د تکفین او تجهیز مصارف به څوک ورکوي؟ | زده‌کوونکی ځواب ورکوي. |
| ۵ دقیقې | **ددرس لنډیز:**<br>تاسو په دې درس کښې د جنازې تعریف، آداب او د ښخکدن د وخت اداب زده کړل چې مړی څه حقوق لري او د حقیقي د شهید احکام څه دي او که نوی پیدا شوی ماشوم مړ شي څه باید وشي. د تکفین او تجهیز مصارف له کومه تامینږي؟ | زده کوونکې غوږ نیسي. |
| | **کورنۍ دنده:**<br>محترم ښوونکی ددرسي کتاب د لارښوونې سره سم زده‌کوونکو ته کورنۍ دنده ورکړي. | |

**نولسم لوست**:

**سرلیک:** مړي ته غسل ورکول او پر هغه د جنازې لمونځ کول.

**مخ :** ۱۳۶-۱۴۱

**وخت:** یو درسې ساعت (۴۵ دقیقې)

**موخې:** زده کوونکې باید :

**الف:** مړي ته د غسل او تکفین له طریقې سره اشنا شي اود جنازې مسائل، سنتونه او د جنازې د لمانځه څرنګوالې زده کړي.

**اضافي معلومات:**

مړی ته غسل ورکول کفایي فرض دی، او د لاندې شرطونو په بشپړیدو غسل ورکول کیږي:

۱- مسلمان وي.

۲- د مړي د بدن ډیره یا نیمه برخه د سر په شمول شتون ولري.

۳- د اعلاء کلمة الله په لار کښې شهید شوی نه وي ځکه چې شهید ته غسل نه ورکول کیږي، بلکه له وینو او جامو سره ښخیږي.

۴- سقط شوی نه وي، یعني نوی زیږیدلی ماشوم مړ او ناقص الخلقت نه وی پیدا شوی.

**د جنازې اړوند څه مسائل:**

که مړی بې د جنازې د لمانځه ښخ شوی وي، د هغه په قبر لمونځ کیږي، خو چې خراب شوی نه وي.

که جنازې له یوې څخه زیاتې وي غوره داده چې په هر یوه جلا جلا لمونځ وشي، خو که په ټولو یـو ځلې لمـونځ وشي جواز لري. په دې صورت کښې ټولې جنازې په یوه اوږده صف کښې د امام مخامخ ایښودل کیږي.

څوک چې امام ددوو تکبیرونو په مینځ کښې پیدا کړي، منتظر دې پاتې شی څو امام بل تکبیر ووایي او د تکبیـر لـه ویلو سره په امام پسې اقتداء کوي او له هغه سره دعاوي وایي. په پای کښې فوتي تکبیرونه د جنازې له اخستلو څخه دمخه قضائي راوړي.

که کوم شخص د احرام له تکبیر څخه وروسته او له دویم تکبیر څخه مخکې حاضر شی په امام پسې اقتداء کوي او دویم تکبیر ته منتظر نه پاتې کیږي.

که یو شخص له څلورم تکبیر څخه وروسته مخکې له سلام ګرځولو حاضر شی، د جنازې لمونځ له هغه څخه فـوت شوی دی.

تر هدیرې پورې د مړي اخستل فرض کفایه دي او عبادت شمیرل کیږي چې ډیر ثواب لري،

او د جنازې شاته تلل تر مخکې تللو غوره دی.

**د تدریس تګ لاره:** شرحه کول، پوښتنه او ځواب، او تمثیل.

**مرستندویه درسي توکي:** کتاب، تخته، تباشیر او نور.

د لوست بهیر:

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکي فعالیتونه |
| --- | --- | --- |
| ۵ دقیقې | **سریزه:**<br>محترم ښوونکی له سلام او روغبړ، د حاضرۍ لـه اخستلو، د ټولګي د نظافت له ترتیب او کنترول څخه وروسته، کورنی کار ګوري.<br>محترم ښوونکی د پخواني درس ارزونه کوي:<br>جنازه تعریف کړئ اود ځنکدن د حال ځینې سنتونه بیان کړئ.<br>مړي څه حقوق لري؟<br>محترم ښوونکی د نوي درس لپاره هڅونه پیل کوي:<br>تاسو پوهیږئ چې مړی له خاصو دیني مراسمو سره خاورو تـه سپارل کیږي. له دې جملې څخه مړي ته د غسل ورکول او د جنـازې لمونځ کول دي. په دې درس کښې په دې هکله له ځینې احکـامو سره اشنا شئ. | زده‌کـوونکي د سـلام ځـواب ورکوي.<br>زده‌کوونکی ځواب ورکوي. |
| ۲۵ دقیقې | **ددرس وړاندې کول:**<br>۱- محترم ښوونکی د نوي درس سرلیک (د مړي مینځـل او پـر هغـه د جنازې لمونځ کول) پر تخته لیکي له زده‌کوونکو څخه غواړي چې درس په کراري او چوپتیا سره ولـولي. پخپله ښـوونکی لـه دې وخـت څخـه ګټـه اخلـي او ځنګلـوري سـرلیکونه پـر تختـه لیکـي څـو د زده‌کوونکو ذهن دې خواته راواړوي.<br>۲- له هغو وروسته د مړي د مینځلو اړوند مسائل تشریح کوي او په دې هکله پوښتني مطرح کوي او زده کوونکې ځوابونه وایی.<br>۳- وروسته دکفن په بحث پیل کوي او د امکان په صـورت کـې یـوه بیاتي یوه زړه ټوټه له ځان سره راوړي او د پـرې کولـو او مـړې تـه د وراغستلو طریقه عملا تمثیلوي او زده‌کوونکو ته یـې پـه مشـخص ډول ورښیي چې قمیص کوم دی او ازار او لفافه کومه ده؟<br>۴- بیا له څو تنو زده‌کوونکو څخـه غـواړي چې کفـن پـرې کـړي او څرنګوالی دې وښیې.<br>۵- وروسته د جنازې لمانځه ته رارسیږي او په ترتیب سره دعاوې لولي او له زده‌کوونکو څخه غواړي چې هغه تکـرار او لـه یـادو یـې کـړي.<br>وروسته زده‌کوونکي په څو ډلو ویشي او له هغوی څخـه غـواړي چـې دعاوې له یو بل څخه وپوښتي او له تیر وتنې څخه پرته یې یادې کړي او په هره ډله کښې دې یـو لایـق زده کـوونکی لـه نـورو سره مرسته کوي. ښوونکی ددې ډلو څارنه کوي او ددوې تیر وتنې اصلاح کوي.<br>وروسته ښوونکی د کتاب فعالیت د لارښوونې سره سم اجرا کوي. | زده‌کـوونکي غـوږ نیسـی او ځواب ورکوي.<br>زده‌کـوونکي وینـي او غـوږ نیســي. او د قمــیص، ازار او لفافې د پرې کولو مهارت پیـدا کوي.<br>زده‌کـوونکي یـې لـولي او لـه یادو یې زده کوي. |

| | | |
|---|---|---|
| | په پای کې د ارزونې برخې ته رارسیږي: | |
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>۱- د جنازې د لمانځه دعاګانې دې ولولي.<br>۲- کفن په څو قسمه دی؟<br>۳- د نارینه او ښځې کفن څه توپیر لري؟ | زده کوونکي ځواب ورکوي. |
| ۵ دقیقې | **ددرس لنډیز:**<br>تاسو په دې درس کښې د مړې له مینځلو او کفن ورکولو سره اشنا شوئ. دا مو زده کړل چې مسنونه کفن له قمیص، ازار، او لفافې څخه مقصد دی او د ښځې په کفن کښې خمار او خرقه هم اضافه کیږي. د جنازې لمونځ دوه رکنه لري: څلور تکبیره او قیام. | زده کوونکي غوږ نیسي |
| | **کورنۍ دنده:**<br>محترم ښوونکی د درسي کتاب له لارښوونې سره سم زده کوونکو ته کورنۍ دنده ورکړي. | |

**شلم لوست**:

**سرليک:** زکات

**مخ:** ۱۴۲-۱۴۵

**وخت:** يو درسي ساعت (۴۵ دقيقې)

**موخې:** زده‌کوونکی باید:

**الف:** د زکات تعريف، حکم او د هغه د فرضيت دلائل، د هغه د وجوب او صحت شرطونه زده کړي او په دې وپوهيږي چې په کومو شيانو کې زکات واجبيږي؟

ب: د پورتنيو حکمونو د عملي کولو مهارت پيدا کړي.

**اضافي معلومات:**

د مال زکات له دې امله په دې نوم ونومول شو چې له اصلي مال څخه د يوې برخې د زکات د ايستلو او د اخستونکې ددعاء په برکت وده کوي، مال پاکيږي او زياتيږي او د اړو خلکو حقوق په کښې نه پاتې کيږي.

زکات د اسلام له ارکانو څخه يو ستر او مهم رکن دی. منکر يې کافر کيږي او د هغه په ورکړې سره فقر او بد بختي له مينځه ځي، د مينې تړاو پياوړی کيږي او د بډايو او فقيرانو تر مينځ وروروري رامينځ ته کيږي.

رسول کريم ﷺ فرمايلي دي: (**الزَّكَاةُ قَنْطَرَةُ الإِسْلامِ**) "زکاة د اسلام پل دی." يعنی: داسې پل دی چې فاصلې له مينځه وړي او فقيران او بډايان سره نژدې کوي.

**دين د زکات د اداء له مخې په درې ډوله دی:**

۱- قوي دين.

۲- متوسط دين.

۳- ضعيف دين.

**الف: قوي دين،** د قرض او يا تجارتي مال بدل دی، په داسې ډول چې مديون(پوروړی) په دين باندې اعتراف وکړي که مفلس هم وي.

همداشان که مديون منکر وی، خو دائن (د پور خاوند) ددې وس ولري چې خپل دين ددليل له مخې په مديون ثابت کړي.

په دې ډول دين کښې د زکات ورکول په دائن واجب دی، نو چې کله د څلوېښتو درهمو معادل پيسې يې ترلاسه کړې، يو درهم زکات به ورکوي. په قوي دين کښې د يوه کال تيريدل له کومه وخته چې د نصاب خاوند شي اعتبار لري، نه ددين د قبض له وخته، له همدې امله د تيرو کلونو زکات ورکول هم ورباندې واجبيږي، خو اداء کول يې ددين له قبض څخه وروسته واجبيږي.

**ب: متوسط دين:** دا د تجارت دين نه دی، بلکې هغه د خپلو اصلي حوائجو څخه يو شی لکه کور يا د اغوستلو جامې او داسې نور خرڅ کړي او د هغو پيسې يې د مشتري په ذمه باقي پاتې وي.

په دې متوسط دين کښې زکات واجب نه دي، مګر هلته واجبيږي چې کامل نصاب قبض کړي. د مثال په ډول که يې د يو زرو درهمو معادل پيسې په مديون باندې وي، او دوه سوه درهمه يې له هغه څخه قبض کړې، نو پنځه درهمه زکات به ورکوي.

او په متوسط دين کښې هم د يوه کال تيريدل د نصاب له مالك ګرځيدلو څخه وروسته اعتبار لري، نه دقبض له وخت څخه، له همدې امله د تيرو کلونو زکات ورکول پرې واجبيږي، خو د هغه اداء کول له قبض کولو څخه وروسته په هغه واجبيږي.

**ج: ضعيف دين:** دغه دين له مال څخه پرته د نور شي په مقابل کښې دې، لکه د ښځې مهريه ځکه چې هغه د مال په مقابل کښې نه ده چې خاوند له خپلې ميرمنې څخه اخستې وي. په ضعيف دين کښې زکات نه واجبيږي، مګر د کامل نصاب په قبضولو او د قبض له وخته د يوه کال په تيريدلو سره، له همدې امله د تيرو کلونو زکات ورباندې واجب نه دی.

**د ضمار د مال زکات:**

د ضمار مال هغه دی چې د سړي په ملك کښې خو وي، خو لاس رسی ورته مشکل وي. د مثال په ډول، څه اندازه پيسې يې يو چاته قرض ورکړې وي، خو شاهدان نه لري او له يو څه مودې وروسته په لاس ورشي. يا يو څوك د چا مال غصب کړي او له څه مودې وروسته غاصب مال ورته بيرته ورکړي. يا يې مال ورك شوی وي او له يو څه مودې وروسته يې پيدا کړي او يا خپل مال په داسې ځای کښې خښ کړی چې د خښيدو ځای يې هير شي او له يو څه مودې وروسته يې پيدا کړي. نو د ضمار په مال کښې د تيرو کلونو زکات واجب نه دي.

**د تدريس تګ لاره:** شرحه کول، پوښتنه او ځواب، تمثيل.

**مرستندويه درسي توکي:**

**ددرس جريان:**

| وخت | ښد ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکي فعاليتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقيقې | **سريزه:**<br>محترم ښوونکی له سلام او روغبړ، د حاضرۍ له اخستلو، د ټولګي د نظافت له ترتيب او کنترول څخه وروسته کورنی کار ګوري.<br>محترم ښوونکی د پخواني درس ارزونه  کوي:<br>د مړي د مينځلو لپاره څوك مناسب دی؟<br>مسنونه کفن تشريح کړي.<br>د جنازې دعا ولولئ.<br>محترم ښوونکی د نوي درس لپاره هڅونه پيل کوي:<br>تاسو پوهيږئ چې اسلام پنځه رکنه لري او تاسو تر دې ځايه له يوه مهم رکن سره، چې لمونځ دی، اشنا شوئ او هغه مو زده کړ. اوس د بل رکن نوبت رارسيدلی دی چې زکات دی. | زده کوونکي د سلام ځواب ورکوي.<br><br>زده کوونکي ځواب ورکوي. |

| | | |
|---|---|---|
| ۲۵ دقیقې | **ددرس وړاندې کول:**<br>۱- محترم ښوونکی د نوي درس سرلیك (زکات) پر تخته لیکي او له زده‌کوونکي څخه پوښتنه کوی چې د زکات معنا څه ده؟ د دوو دریو زده‌کوونکو ځواب دې واوري او وروسته دې پخپله د کتاب له مخې دوې ته معلومات ورکړي.<br>۲- وروسته د زکات حکم د فرضیت له دلائلو سره تشریح کوي او بیا دغه پوښتنې پر تخته لیکي: د زکات د وجوب شرطونه کوم دي؟ هغه مالونه، چې له هغو څخه زکات ورکول کیږي، څه شرطونه لري؟ د زکات د صحت شرطونه کوم دي؟ له کومو مالونو زکات واجبیږي؟<br>کله چې د زده‌کوونکو ذهن دې پوښتنو ته متوجه شو، ځواب ورکوي او مهمې نکتې یې پر تخته لیکي او په پای کښې د زده‌کوونکو د پوښتنې د هر ځواب ارزونه کوي او ګوري چې ایا کومه مهمه نکته خو ددوې په ذهن کښې پاتې نه ده؟<br>۳- په پای کښې ښوونکی د کتاب فعالیت له لارښوونې سره سم سر ته رسوي.<br>وروسته د ارزونې برخې ته رارسیږي: | زده‌کوونکي ځواب ورکوي.<br><br><br><br><br>زده کوونکې دې متوجه وي.<br><br><br><br><br><br><br><br>زده‌کوونکي غوږ نیسی، ځواب ورکوي او پوښتنه کوي. |
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>۱- د زکات لغوی او اصطلاحي معنا څه ده؟<br>۲- د زکات د فرضیت دلیل له قران څخه راوړئ؟<br>۳- د زکات د صحت شرطونه په لنډ ډول بیان کړئ؟.<br>۴- د مال خاوند د څه شرطونو لرونکی وي؟<br>۵- د هغو مالونو نومونه واخلئ چې په هغو کښې زکات واجب دی. | زده‌کوونکي ځواب ورکوي. |
| | **د درس لنډیز:**<br>زکات په لغت کښې پاکی او برکت ته وایي او د اسلام له رکنونو څخه دی. تاسو د زکات پنځه شرطونه وویل او پنځه شرطونه پخپله مال پورې اړه لري، د زکات دصحت شرطونه هم پنځه دي. زکات په څارویو، تجارتی مالونو، د ځمکې په محصولاتو، سرو زرو، سپینو زرو او معدنونو کښې واجبیږي. | زده‌کوونکی غوږ نیسي. |
| | **کورنی دنده:**<br>محترم ښوونکی دې د درسي کتاب له لارښوونې سره سم زده‌کوونکو ته کورنۍ دنده ورکړي. | |

**یو ویشتم لوست**:

**سرلیک:** د څارویو زکات

**مخ:** ۱۴۶– ۱۴۴۹

**وخت:** یو درسي ساعت( ۴۵ دقیقې).

**موخې:** زده کوونکې باید :

**الف:** زده‌کوونکي دې فقط د څارویو د زکات په هکله ټولنیز معلومات لاس ته راوړي. هدف دا نه دی چې په جزئیاتو باندې معلومات وړاندې شي.

**ب:** د عمومي معلوماتو د وړاندې کولو مهارت ولري.

**اضافي معلومات:**

محترم ښوونکی !

په دې لوست کې درس یوازې کولای شي چې د زکات په هکله ټولنیز معلومات وړاندې کړي، ځکه چې د زده‌کوونکو ذهن په دې عمر کښې د جزئیاتو د زغم وس نه لري. ښه داده چې محترم ښوونکی دغې نکتې ته پاملرنه ولري او د آزموینې په وخت کښې هم په دې درس ډېر ترکیز ونه کړي.

**ددرس تګلاره:** تشریح، پوښتنه او ځواب او تمثیل.

**مرستندویه درسي توکي:** کتاب، تخته، تباشیر او نور.

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکي فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | **سریزه:**<br>محترم ښوونکی له سلام او روغبړ، د حاضرۍ له اخستلو، د ټولګي د نظافت له ترتیب او کنترول څخه وروسته د پخواني درس ارزونه کوي:<br>د زکات لغوي او اصطلاحي معنا څه ده؟<br>د زکات د وجوب شرطونه کوم دي؟<br>له کومو مالونو زکات ورکول کیږي؟<br>محترم ښوونکی زده‌کوونکي نوې درس ته هڅوي:<br>تاسو په مخکینې درس کښې ولوستل یو له هغو مالونو چې په هغه کښې زکات واجب دی، څاروي دي په دې درس کښې ورباندې بحث کوو. | زده‌کوونکی د سلام ځواب ورکوی.<br><br>زده‌کوونکي ځواب ورکوي. |

| وخت | د درس فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیت |
| --- | --- | --- |
| ۲۵ دقیقې | **ددرس وړاندې کول:**<br>۱- محترم ښوونکی د نوي درس سرلیك (د څارویوزکات) پر تخته لیکي او له زده‌کوونکو څخه دې پوښتنه وکړي: ایا پوهیږئ دلته کوم څاروي مقصد دي؟ ښوونکی د کتاب له مخې هغو ته معلومات ورکوي.<br>وروسته بیا د اوښ زکات پر تخته مفصل لیکي او شرحه ورکوي، د کتاب فعالیت د لارښوونې سره سم اجراء کوي.<br>۲- بیا د غوایی زکات ته رارسیږي او د پوښتنې او ځواب په شکل یې شرحه کوي او د کتاب دویم فعالیت د لارښوونې سره سم سرته رسوي.<br>۳- ددرس دریمه برخه هم ددوو پخوانیو برخو په څیر پای ته رسوي او د کتاب دریم فعالیت هم د لارښوونې سره سم تر سره کوي.<br>وروسته د ارزونې برخې ته رارسیږي. | زده‌کوونکی غوږ نیسي.<br><br>زده‌کوونکي د فعالیت له اجرا کولو څخه وروسته پاملرنه کوي. |
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>۱- د لسو اوښانو زکات څومره دی؟<br>۲- د شلو اوښانو زکات څومره دی ؟<br>۳- د غوایي او میښو زکات څومره دی؟<br>۴- د څلویښتو پسونو او اوزو زکات څومره دی؟ | زده‌کوونکي ځواب ورکوی. |
| ۵ دقیقې | **ددرس لنډیز:**<br>هغه څاروي، چې زکات یې ورکول کیږي: غوایې ، میښې، اوښان، اوزې او پسونه دي. له دې امله په وحشي څارویو کښې زکات نه شته. | زده‌کوونکی غوږ نیسي. |
| | **کورنی دنده:**<br>محترم ښوونکی ددرسي کتاب له لارښوونې سره سم زده‌کوونکو ته کورنی دنده ورکوي. | |

## دوه ویشتم لوست:

**سرلیک:** د میوو او د ځمکې د محصولاتو زکات

**مخ:** ۱۵۰- ۱۵۳

**وخت:** یو درسي ساعت ( ۴۵ دقیقی)

**موخې:** زدده کوونکي باید:

الف: زده کوونکي دې یوازې د ځمکو د محصولاتو په هکله ټولنیز او عمومي معلومات حاصل کړي. یادونه باید وشي چې د جزئیاتو معلومات وړاندې کول هدف نه دي.

ب: د عمومي معلوماتو د وړاندې کولو مهارت پیدا کړي.

**اضافي معلومات:**

دغه لوست هم دومره زیات توضیح ته اړه نه لري، نو ځکه د کتاب په معلوماتو اکتفا وشوه. د نورو معلوماتو په ځای د زکات د ځرنګوالي په هکله معلومات وړاندې کیږي.

د زکات مالك نه شي کولای خپل زکات خپل اصل( لکه پلار، نیکه او له دې څخه لوړ) ته، همداشان خپل زوذات ( لکه زوی، لمسی او پسې) ته ورکړي.

میره او ښځې ته هم جواز نه لري خپل زکات یو بل ته ورکړي، خو نورو خپلوانو ته د زکات ورکړه نه یوازې جائز ده، بلکې غوره هم ده.

د مسجد، مدرسې، لارې او پله په جوړولو کښې د زکات مصرفول جواز نه لري. پاتې دې نه وي چې د مدرسې طالبانو او استاذ انو ته د زکات مصرفول جواز لري او مسؤلین کولای شي وکالتا زکات قبض کړي او لږ لږ مصرف کړي. د کامل نصاب په اندازه یوه تن ته زکات ورکول مکروه دي، خو که څوك پوروړی وي، هغه ته نه یوازې چې ورکول جواز لري، حتی که تر نصاب زیات هم ورکړي جواز لري تر څو یې قرض اداء شي.

**د جواهراتو زکات:** د سروزرو د زکات نصاب شل مثقاله (۸۵ ګرامه) او د سپینو زرو د زکات نصاب ۵۹۵ ګرامه دی. څوك چې د همدومره نصاب مالك وی نو۲،۵ فیصده زکات به ورکوي.

**د تدریس تګ لاره:** شرحه کول، پوښتنه او ځواب، تمثیل.

**مرستندویه درسي توکي:** کتاب، تخته، تباشیر او نور.

**ددرس جريان:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکي فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | **سریزه:**<br>محترم ښوونکی له سلام او روغبړ، د حاضرۍ له اخستلو، د ټولګي د نظافت له ترتیب او کنترول څخه وروسته کورنی کار ګوري.<br>محترم ښوونکی د پخواني درس ارزونه  کوي:<br>زموږ پخوانی درس د څه شي په باره کښې و؟<br>له کومو څارویو څخه زکات ورکول کیږي؟<br>محترم ښوونکی زده‌کوونکي نوي درس ته هڅوي:<br>ایا کولای شئ ووایاست د کومو شیانو زکات ورکول کیږي؟<br>د زده‌کوونکو له ځواب څخه وروسته، ښووونکی وایـي: پـه دې درس کښې د ځمکې د محصولاتو په هکله بحث کوو. | زده‌کوونکي د سلام ځـواب ورکـوي.<br><br>زده‌کوونکي ځواب ورکوي. |
| ۲۵ دقیقې | **د درس وړاندې کول:**<br>۱- محتـــرم ښـــوونکی د نـــوي درس ســـرلیک ( د ځمکـــې د محصولاتو زکات) پر تخته لیکـي، لـه زده‌کوونکـو څخـه پوښـتنه کوي آیا پوهیږئ چې د میوو زکات څه شی دی؟<br>د هغه د نامه له اخستلو وروسته محترم ښوونکی دغه مطلب پر تخته لیکي:<br>د ځمکې د محصولاتو د زکات د وجوب دلائل څه دي؟<br>د عشر د وجوب لپاره څه شرطونه ایښـودل شـوي دي او لـه نـورو مالونو سره څه توپیر لري؟<br>ایا پوهیږئ چې د نقودو معنا څه ده؟<br>د سرو او سپینو زرو د زکات اندازه څومره ده؟<br>له مروجو بانکي نوټونو څخه څنګه زکات ورکول کیږي؟<br>زکات کومو کسانو ته ورکول کیږي؟<br>۲- محترم ښوونکی ددې پوښتنو پـه مطرح کولـو د زده‌کوونکو ذهن د درس عمده نکتو ته را اړوي او هغوی تـه وایـي چـې اوس به دې پوښتنو ته په ترتیب سره ځواب ورکوو.<br><br>وروسـته د لـومړۍ او دویمـې پوښـتنې پـه ځـواب پیـل کـوي او د لارښوونې سره سم د کتاب فعالیت تر سره کوي.<br><br>۳- له تشریح څخه مخکې له یو زده‌کوونکي څخه غواړي چې یـو ځلې درس په لوړ غږ ولولي، تـر څـو نـور ورتـه غـوږ ونیسـي او د | زده‌کوونکي غوږ نیسي.<br><br>ښه ده چې زده‌کـوونکی دغـه پوښـتنې یاداشت کړي.<br><br>زده کـوونکي غـوږ نیسـي او ځـواب ورکوي او د هرې پوښـتنې ځـواب زده کوي.<br><br>یو زده‌کوونکی یې لـولي او نـور ورتـه غوږ نیسي. |

| | | |
|---|---|---|
| | درس له مطلب سره اشنا او د استاذ توضیحاتو ته ځیر شي.<br>۴- وروسته پخپله استاذ لیکل شوي پوښتنو ته په اشارې سره ددرس په تشریح کولو پیل کوي او د هرې پوښتنې له ځواب ورکولو وروسته د هغه لنډیز له زده‌کوونکو څخه پوښتي او خپل درس ته ادامه ورکوي په پای کښې د لارښوونې سره سم د کتاب د دویم فعالیت په اجرا کولو سره د ارزونې برخې ته رارسیږي. | |
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>۱- د میوو او ځمکو د محصولاتو د زکات بل نوم څه دی؟<br>۲- د سرو او سپینو زرو د نصاب اندازه څومره ده او څومره زکات واجبیږي؟<br>۳- کومو خلکو ته زکات ورکول کیږي؟ | زده‌کوونکي ځواب ورکوی. |
| ۵ دقیقې | **ددرس لنډیز:**<br>د ځمکې محصولاتو ته عشر ویل کیږي، او د وجوب درې شرطونه لري. شپږ شیان چې په نورو څایونو کښې شرط وو په هغه کښې شرط نه دي، او د سرو زرو نصاب ۸۵ ګرامه او د سپینو زرو ۵۹۵ ګرامه دی. د اوسنیو بانک نوټونو د ارزښت د معلومولو لپاره هم د سرو او سپینو زرو معیار په نظر کښې نیول کیږي او د انسانانو اوو ډلو ته زکات ورکول کیږي. | زده‌کوونکی غوږ نیسي. |
| | **کورنی دنده:**<br>محترم ښوونکی د درسي کتاب له لارښوونې سره سم زده‌کوونکو ته کورنی دنده ورکړي. | |

**درویشتم لوست:**

**سرلیک:** حج

**صفحه:** ۱۵۴- ۱۵۷

**وخت:** یو درسي ساعت ( ۴۵)

**موخې:** زده کوونکي باید:

**الف:** د حج تعریف او حکم د فرضیت له دلائلو او د وجوب له شرطونو سره زده کړي.

**ب:** د حج د احکامو د عملي کولو مهارت پیدا کړي.

**اضافي معلومات :**

د حج حکمتونه:

جناب رسول کریم ﷺ فرمایي: ( **من حج لله فلم یرفث و لم یفسق رجع کیوم ولدته امه**)،

"هر څوک چې د الله لپاره حج وکړي او په دې وخت کښې د رفث ( له جماع، د هغې له مقدماتو لکه ښکلول او په شهوت سره له لمسولو څخه پرهیز وکړی)، له ښکنځلو ځان وساتی، نو هغه داسې شي لکه مور چې نوی زیږولی وي( له ګناهو پاک شی)."

**نکته:** د حج د وجوب له شرطونو څخه د بدن روغوالی، د تګ او راتګ د مصارفو لرل، د لارې د امنیت شتون او له ښځې سره د محرم موجودیت دی.

**احرام:** د حج نیت کولو ته وایي له میقاته له تلبیې ویلو سره، نارینه وو ته د ګنډل شویو جامو ایستل او په ځای یې د نا ګنډل شویو جامو اغوستل او غوره داده چې جامه ازار او رداء وي(لنګ او څادر).

**تلبیه:** د دغو کلماتو ویلو ته تلبیه وایي: ( **لبیک اللهم لبیک، لبیک لا شریک لک لبیک، ان الحمد والنعمة لک والملک، لا شریک لک**).

د حج د صحت په شرطونو کښې پنځم خاص شرط وخت دی. له هغه څخه مقصد د حج میاشتې: شوال، ذو القعده، او د ذي الحجې لس ورځې دي، چې له دې میاشتو څخه مخکې او وروسته صحیح نه دی.

**دتدریس تګلاره:** تشریح کول، پوښتنه او ځواب، او تمثیل.

**مرستندویه درسي توکي:** کتاب، تخته، تباشیر او نور.

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکي فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | **سریزه:**<br>محترم ښوونکی له سلام او روغبړ، د حاضرۍ له اخستلو، د ټولګي د نظافت له ترتیب او کنترول څخه وروسته کورنی کار ګوري.<br>محترم ښوونکی د پخواني درس ارزونه کوي:<br>د عشر د وجوب شرطونه بیان کړئ.<br>د سرو او سپینو زرو د زکات نصاب څومره دی؟<br>له مروجو بانک نوټونو څخه زکات څنګه ورکول کیږي؟<br>محترم ښوونکی د نوي درس لپاره هڅونه پیل کوي:<br>ایا د تاسو په مینځ کښې داسې څوک شته چې د هغه مور او پلار حج ته تللي وي؟ | زده کوونکی د سلام ځواب ورکوي.<br><br><br>زده کوونکي ځواب ورکوي. |

| | | |
|---|---|---|
| | ایا دحج په معنا پوهیږئ؟ په دې خبریاست چې زموږ د دین له ارکانو څخه دی؟ | |
| | **ددرس وړاندې کول:**<br>۱- محترم ښوونکی د نوي درس سرلیک (حج) پر تخته لیکي. له زده‌کوونکو څخه غواړي چې درس په کراری او چوپتیا سره ولولي. په دې ترڅ کښې ښوونکی دغه پوښتنې پر تخته لیکي:<br>دحج لغوی او اصطلاحی معنا څه ده؟<br>په کومو دلائلو دحج فرضیت ثابت شوی دی؟<br>په کومو کسانو حج واجب دی؟<br>له وس او قدرت څخه مقصد څه شی دی؟<br>د حج د صحت شرطونه کوم دي؟<br>۲- وروسته ښوونکی په ترتیب سره دکتاب پوښتنې مطرح کوي او له زده‌کوونکو څخه غواړي ځواب ورکړي. په کومو ځایونو کښې چې ضرورت وي درس یو څه زیات تشریح کوي په ځانګړې ډول د احرام او دحج د میاشتو په هکله یو څه رڼا اچوي او که وخت و نو د حج په حکمتونو هم بحث کوي.<br>په پای کښې د کتاب فعالیت د لارښوونې سره سم سرته رسوي او د ارزونې برخې ته رارسیږي. | زده‌کوونکي درس لولي.<br><br>غوره داده چې زده‌کوونکي دغه پوښتنې له ځان سره یاداشت کړي.<br><br>زده‌کوونکي دې غوږ ونیسي. |
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>۱- د حج لغوي او اصطلاحي معنا څه ده؟<br>۲- له استطاعت څخه مقصد څه دی؟<br>۳- د حج د صحت شرطونه کوم دي؟ | زده‌کوونکي ځواب ورکوی. |
| ۵ دقیقې | **د درس لنډیز:**<br>حج په لغت کښې قصد کولو ته وایي او په اصطلاح کښې : د مخصوص عبادت د اداء لپاره، په مخصوصو شرطونو، په مخصوصو ځایونو، او مخصوص وخت کښې، د بیت الله الحرام زیارت ته قصد کول دي. د هغه فرضیت په قران کریم، حدیث نبوي او اجماع سره ثابت دی. د وجوب دری شرطونه لري او دصحت لپاره یې پنځه شرطونه ذکر شوي دي. | زده‌کوونکي غوږ نیسي. |
| | **کورنۍ دنده:**<br>محترم ښوونکی د درسي کتاب له لارښوونې سره سم زده‌کوونکو ته کورنۍ دنده ورکوي. | |

**ځلرويشتم لوست**:

**سرليك:** د حج فرضونه او واجبات

**مخ:** ۱۵۱

**وخت:** يو درسي ساعت( ۴۵ دقيقې)

**موخې:** زده‌کوونکي بايد:

الف: د حج له فرضونو او واجباتو سره اشنا شي او هغه چارې چې د سعيې په وخت او مزدلفه کښې بايد رعايت شي زده کړي او د جمرو ويشتلو په هکله معلومات تر سره شي.

ب: د پورتنيواحکامو د عملي کولو مهارت پيدا کړي.

**اضافي معلومات:**

محترم ښوونکيه! تاسو متوجه شوي ياست چې احرام هم د حج په شرطونو کښې ذکر شوی دی او هم د حج په ارکانو کې په داسې حال کښې چې زموږ د احنافو فقهي کتابونو احرام په شرطونو کښې ذکر کړی دی او يوازې په عرفه کښې وقوف او طواف زيارت يې دحج له ارکانو څخه ګڼلي دي. علت يې دادی چې په پيل کښې احرام شرط دی او په پای کښې د رکن حکم ځان ته خپلوي . د زياتو معوماتو لپاره تاسو کولای شی د ردالمحتار او در المختار حاشيي( حاشية ابن عابدين) جلد ۳ صفحه ۵۳ ۷ مخ نوې چاپ ته مراجعه وکړئ.

په عرفه کښې وقوف کول د ذی الحجې د نهمې ورځې له زوال څخه نيولی د ذی الحجې د لسم ورځې د سهار تر لمانځه پورې فرض دی. که څوک ددې دوو وختونو په مينځ کښې که د يوه ساعت لپاره هم ودريږی، نو وقوف يې کړی او فرض يې تر سره کړي دي.

**د تدريس تګ لاره:** شرحه کول، پوښتنه او ځواب، او تمثيل.

**مرستندويه درسي توکي:**

**ددرس جريان:**

| وخت | د ښوونکي فعاليتونه | د زده‌کوونکي فعاليتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقيقې | **سريزه:**<br>محترم ښوونکی له سلام او روغبړ، د حاضرۍ له اخستلو، د ټولګي د نظافت له ترتيب او کنترول څخه وروسته کورنی کار ګوري.<br>محترم ښوونکی د پخواني درس ارزونه کوي:<br>د حج لغوي او اصلاحي معنا څه ده ؟<br>په چا حج واجب دی؟<br>له قدرت او استطاعت څخه مقصد څه دی؟<br>محترم ښوونکی نوې درس ته هڅونه پيل کوي:<br>په حج کښې مختلف اعمال ترسره کيږي چې ځينې له هغو فرض، ځينې واجب او ځينې يې سنت دي. په دې درس کښې موږ له لاندې مطالبو سره اشنا کيږو:<br>الف: د حج فرايض.<br>ب: د حج واجبات. | زده‌کوونکی د سلام ځواب ورکوی.<br><br>زده‌کوونکي ځواب ورکوي |

| | | |
|---|---|---|
| | ج: هغه چارې چې باید د صفا او مروه تر مینځ په سعیې کښې رعایت شي.<br>د: هغه څه چې باید په مزدلفه کښې رعایت شي.<br>ه: دجمرې معنی او دهغې ډولونه. | |
| ۲۵ دقیقې | **د درس وړاندې کول:**<br>۱- محترم ښوونکی د نوي درس د سرلیک (د حج فرائض او واجبات) له لیکلو وروسته پورتنې مطالب یو یو پر تخته لیکې او د حج د فرائضو او واجباتو له لیکلو وروسته زده کوونکې په څو ډلو ویشې او ورڅخه غواړي چې یو له بله واجبات وپوښتي او که کوم ابهام او کړکیچ شتون ولري، د ښوونکيٍ په مرسته دې حل کړي.<br>۲- په دې لړ کښې له یوه تن زده‌کوونکي څخه غواړي چې د درس دریمه او څلورمه ماده په لوړ غږ ولولي او نور دې ورته ښه غوږ ونیسي. وروسته یې ښوونکی پخپله شرحه کوي او په دې هکله ځینې پوښتنې مطرح کوي، تر څو زده‌کوونکي ځواب ورکړي.<br>۳- ددې برخې په پای ته رسیدو سره د جمراتو بحث ته رسیږي، په شرحه یې پیل کوي او له زده‌کوونکو څخه غواړي چې د جمرې مسائل یو له بله وپوښتي چې همدغه کار د فعالیت ځای نیسي.<br>په دې ډول د ارزونې برخې ته رار سیږي. | زده‌کوونکي غوږ نیسي.<br>زده‌کوونکي د یو بل پوښتنو ته ځواب ورکوي. |
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>۱- د حج واجبات څو دي ؟<br>۲- په سعیه کښې د کومو شیانو رعایت کیږي؟<br>۳- د جمراتو د ویشتلو وخت بیان کړئ؟<br>۴- د جمراتو د ویشتلو د صحت شرطونه کوم دي؟<br>۵- د جمراتو د ویشتلو سنتونه کوم دي؟ | زده‌کوونکي ځواب ورکوي. |
| ۵ دقیقې | **ددرس لنډیز:**<br>حج درې فرضه او شپاړس واجبه لري. د سعیې په وخت کښې د صفا او مروه په مینځ کښې باید شپږو نکتو، او په مزدلفه کښې د پاته کیدو په وخت کښې پنځو نکتو ته پام وشي. جمره په درې ډوله ده: جمره کبرى، وسطى او صغرى. د جمرې ویشتل درې شرطه او څلور سنته لري. | زده‌کوونکی غوږ نیسي. |
| | **کورنۍ دنده:**<br>محترم ښوونکی د درسي کتاب له لارښوونې سره سم زده‌کوونکو ته کورنۍ دنده ورکړي. | |

**پنځه ويشتم لوست**:

**سرليك:** دحج ډولونه

**صفحه:** ۱۶۳-۱۶۲

**وخت:** يو درسي ساعت ( ۴۵دقيقې)

**موخې:** زده‌کوونکي بايد:

**الف:** د حج ډولونه، د هغو د اداء کولو طريقې او د هغو تر مينځ توپير زده کړي.

**ب:** د حج د ډولونو د عملي کولو مهارت پيدا کړي.

**اضافي معلومات:**

ښايي زده‌کوونکي د عمرې د حج په هکله پوښتنه وکړي، ښه ده محترم ښوونکی په دې باره کښې د ځواب ورکولو چمتو والی ولري:

عمره په ټول عمر کښې يو ځل سنت مؤکد ده، البته هغه وخت چې د حج د اداء د وجوب شرطونه بشپړ وي.

عمره په ټول کال کښې جواز لري، خو د عرفې، د نحر (د ذي الحجې په لسمې) او د تشريق په ورځو کښې د عمرې لپاره احرام تړل مکروه دي.

هغه عملونه چې په عمره کښې تر سره کيږي څلور دي:

۱- احرام

۲- طواف

۳- د صفا او مروه ترمينځ سعيه

۴- د سر خرييل يا د ويښتانو کمول

څوک چې غواړي عمره وکړي که هغه د مکې اوسيدونکي وي يا په مکه کښې اقامت لري د حل ( تنعيم يا جعرانې) منطقې ته ځي او د عمرې لپاره احرام تړي.

که څوک له بهره غواړي مکې ته داخل شي، نو له ميقاته به احرام تړي او بيا به طواف او سعيه کوي او له هغه وروسته خپل سر خريې او يا ويښتان لنډوي.

**د تدريس تګ لاره:** شرحه کول، پوښتنه او ځواب، او تمثيل.

**مرستندويه درسي توکي:** کتاب، تخته، تباشير او نور.

**د لوست بهير:**

| وخت | د ښوونکي فعاليتونه | د زده‌کوونکي فعاليتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقيقې | **سريزه:**<br>محترم ښوونکی له سلام او روغبړ، د حاضرئ له اخستلو، د ټولګي د نظافت له ترتيب او کنترول څخه وروسته کورنی کار ګوري.<br>محترم ښوونکی د پخواني درس ارزونه کوي:<br>د حج د فرائضو او واجباتو نومونه واخلی.<br>جمرې څو دي؟ | زده‌کوونکی د سلام ځواب ورکوی.<br><br>زده‌کوونکي ځواب ورکوي |

| | | |
|---|---|---|
| | محترم ښوونکی زده‌کوونکي نوې درس ته هڅوي:<br>ایا پوهیږئ چې حج په څو ډوله او نومونه یې کوم دي؟ | |
| ۲۵ دقیقې | **ددرس وړاندې کول:**<br>۱- محترم ښوونکی وروسته له دې چې د نوې درس سرلیک ( دحج ډولونه) پر تخته ولیکي، له زده‌کوونکو څخه غواړي چې درس په کراری او چوپتیا سره ولولي. وروسته د حج د ډولونو نومونه دتختې په سر لیکي او یو یو تشریح کوي او د هر یوه د توضیح په پای کې له زده‌کوونکو څخه غواړي که کومه پوښتنه لري، مطرح دې کړي.<br>په پای کښې د کتاب فعالیت له لارښوونې سره سم سرته رسوي او د ارزونې ځای ته رارسیږي. | زده‌کوونکي غوږ نیسي، او که کومه پوښتنه لري هغه مطرح کوي. |
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>۱- حج په څو ډوله دی؟<br>۲- د حج قران معنا څه ده او څه ډول اداء کیږي؟<br>۳- د حج تمتع معنا څه ده او د اداء کولو طریقه یې څه ده؟ | زده‌کوونکي ځواب ورکوي. |
| ۵ دقیقې | **ددرس لنډیز:**<br>حج په درې ډوله دی: قِران، تمتع، او افراد. له یوه احرام سره د حج او عمرې یو ځای اداء کولو ته قران وایي. متمتع هغه څوک دی چې لومړی د عمرې د اداء کولو لپاره احرام تړي او له احرام څخه خارجیږي او د ژوند عادي کارونه ترسره کوي او چې کله د حج وخت راورسیږي دویم ځلې احرام تړي. مفرد حاجي هغه دی چې یوازې دحج لپاره احرام تړي او عمره نه اداء کوي. | زده‌کوونکي غوږ نیسي. |
| | **کورنی دنده:**<br>محترم ښوونکی د درسي کتاب د لارښوونې سره سم زده‌کوونکو ته کورنی دنده ورکوي. | |

## شپږ ویشتم لوست:

**سرليک** : د حج تيت او پرک مسائل

**صفحه:** ۱۶۴– ۱۶۵

**موخې:** زده کوونکي بايد:

**الف:** د حلق، تقصير او د طواف الوداع معنا زده کړي.

**ب:** د پورتنيو مناسکو د اداء کولو مهارت پيدا کړي.

**اضافي معلومات:**

يو له هغو اعمالو چې حجاج کرام يې له حج څخه مخکې يا له فارغيدلو څخه وروسته تر سره کوي، د نبی کريم ﷺ زيارت ته تلل دي. په دې باره کښې رسول اکرم ﷺ فرمايلي دي: ( من زار قبري وجبت له شفاعتي)[15]"چا، چې د ما د قبر زيارت وکړ زما شفاعت هغه ته واجب شو".

او په بل حديث کښې فرمايي: ( **من حج البيت و لم يزرني فقد جفاني**)، چا، چې حج وکړ او زما زيارت يې ونه کړ له ما سره يې جفا وکړه. د رسول کريم ﷺ د قبر زيارت کول له غوره مندوباتو څخه دی. څومره ښه ده چې د حج له فارغيدلو څخه وروسته يا مخکې مدينې منورې ته ولاړ شئ او د نبی کريم ﷺ د مبارکي روضې زيارت وکړئ.

**د تدريس تګ لاره:** شرحه کول، پوښتنه او ځواب او تمثيل.

**مرستندويه درسي توکي:** کتاب، تخته، تباشير او نور.

**د لوست بهير:**

| وخت | د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکي فعاليتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقيقې | **سريزه:** محترم ښوونکی له سلام او روغبړ، د حاضرۍ له اخستلو، د ټولګي د نظافت له ترتيب او کنترول څخه وروسته کورنی کار چې مناسب يې وګڼي ګوري.<br>محترم ښوونکی د پخواني درس ارزونه کوي:<br>حج په څو ډوله دی؟<br>د حج قران د اداء کولو طريقه څه ده؟<br>تمتع او قران څه فرق لري؟<br>محترم ښوونکی زده کوونکي نوي درس ته هڅوي:<br>پوهيږئ هر عبادت خاص اصطلاحات لري، تاسو تر دې ځايه د حج له ځينو اصطلاحاتو سره اشنا شوئ. په دې درس کښې به ځينې نور اصطلاحات زده کړی؟ | زده کوونکي د سلام ځواب ورکوي.<br>زده کوونکي ځواب ورکوي |

[15] -الموطأ – رواية محمد بن الحسن – (۳ / ٤٤٨)

| ۲۵ دقیقې | **ددرس وړاندې کول:**<br>۱- محترم ښوونکی د نوي درس د سرلیک (د حج څو مسئلې) له لیکلو وروسته د حلق، تقصیر او طواف الوداع اصطلاحات هم پر تخته لیکي او د زده‌کوونکو پام د هغو تشریح ته را اړوي له یوه زده‌کوونکي څخه غواړي چې درس په لوړ غږ ولولي. محترم ښوونکی ددرس له تشریح کولو څخه وروسته د کتاب فعالیت د لارښوونې سره سم تر سره کوي.<br>په دې توګه د ارزونې برخې ته رارسیږي. | زده‌کوونکي غوږ نیسي او که څه پوښتنه ولري هغه مطرح کوي. |
|---|---|---|
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>۱- د حلق او تقصیر معنا څه ده؟<br>۲- د طواف الوداع دویم نوم څه دی او په چا واجب دی او کله ساقطیږي؟ | زده‌کوونکی ځواب ورکوي. |
| ۵ دقیقې | **ددرس لنډیز:**<br>حلق سر خریبلو ته وایي او تقصیر د ویښتانو د لنډولو په معنا دی. طواف الوداع هغه دی چې حاجیان یې له مکې څخه د ستنیدواو خدای پاماني په وخت کښې تر سره کوي. | زده کوونکې ځواب ورکوي. |
| | **کورنی دنده:**<br>محترم ښوونکی د درسي کتاب له لارښوونې سره سم زده‌کوونکو ته کورنی دنده ورکوي. | |